# بدعات خرافات
# ناوړه دودونه

د عبادت د نابودۍ خطرناک اسباب وپیژنئ

تألیف: حمدالله شاکري

# سريزه

إن الحمد لله، نحمده، ونستعينه، ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا، ومن سيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يُضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمداً عبده ورسوله، صلّى الله عليه وعلى آله وأصحابه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين، وسلم تسليماً كثيراً. أما بعد:

په دغه كتاب (بدعات او خرافات) كې په مختصر ډول د بدعت پژندنه ، د بدعت اقسام ، د بدعت د خپراوي اسباب او د بدعت خطرناكې پايلې او همدارنګه د سنتو د تابعدارۍ اهميت او فضيلت بيان شوى او د هغه وروسته په ټولنه او عالم كې تقريباً د ټولو يا زياتو خپاره شويو بدعتونو ، خرافاتو او ناوړه رواجونو بيان شوى او په شرعي دلائلو رد شوي دي .

په دې كې شک نشته چې ګناه او بدعت دواړه حرام د اسلامي شريعت مخالفت دي مګر بدعت له ګناه څخه خطرناک دى ځكه ګناه كوونكى كس خپل ځان مجرم ګڼي او د رجوع او توبې په فكر او لټه كې وي مګر بدعتي كس خپل ځان په حقه ګڼي او خپل ځان غوره ګڼي او خپل ځان د شريعت موافق ګڼي له يوې خوا په شريعت پورې دروغ تړي هغه څه چې د شريعت څخه نه وي دى يې په شريعت پورې تړي او له بلې خوا ځان حق بولي نو ځكه د رجوع او توبې هيڅ خيال او فكر پكې نه وي .

او بل خطر يې دا دى چې بدعت اكثراً اهل علم تر سره كوي او عوام د اهل علم تقليد كوي .

او د فردي خطر سربېره ټولنيز خطر يې دا دی کچېرې د بدعاتو او منکراتو پر وړاندې سکوت اختيار شي او د هغه مخنيوی ونه شي نو خلک به په عام عذاب ګرفتار شي .

لقوله سبحانه وتعالى : [وَاتَّقُواْ فِتْنَةً لاَّ تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنكُمْ خَآصَّةً وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ](الانفال : ٢٥).

ژباړه: اوتاسو له هغې فتنې نه ځان وساتئ چې په تاسو کې به يواځې خاص ظالمانو ته نه رسېږي او پوه شئ چې بېشکه الله ډېر سخت عذاب وا لا دی.

ما دغه کتاب په دې نيت وليکلو تر څو مسلمانان بدعات وپېژني ، کرکه ورڅخه وکړي او ځان ورڅخه وساتي ، دغه کتاب مې اووه کاله پخوا پيل کړی وو چې د احتياط له امله مې څو ځله پيل او څو ځله پاتې شوی دی بلاخره د الله سبحانه وتعالى په فضل سره تکميل شو .

الله تعالى ته سوال کوم چې زما دغه ناچيز عمل خالص لله او اتباع رسول الله وګرځوي او الله تعالى يې دې ټولو مسلمانانو ته ګټور وګرځوي.

هر څوک چې ددې کتاب په خپرولو او نشر کې برخه اخلي د هغه لپاره به هم همدومره اجر وي لقوله رسول الله صلى الله عليه وسلم : « مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مثلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ » رواه مسلم.

ژباړه: چا چې د خير لارښوونه وکړه نو هغه لره به د عمل کوونکي په مثل اجر وي .

په دغه کتاب کې حق او صواب د رب العالمين د جانبه دی او که هره خطاء پکې وي هغه زما خطاء ده ، د الله تعالی څخه یې بښنه او معافي غواړم او که چا را په ګوته کړه که ژوندی وم ان شآء الله اصلاح به یې کړم او که وفات وم نو نیت مې له الله تعالی څخه پټ نه دی .

وصلى الله وسلم وبارك على عبده ورسوله، وخيرته من خلقه نبينا محمد وعلى آله، وأصحابه، ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

حمدالله "شاكري"

داراسات الاسلامية – الاكاديمية الاسلامية

کال ۱۴۳۸ قمري ۱۳۹۷ شمشي

# لړلیک

# لومړی فصل

## د بدعت پېژندنه

**د بدعت تعریف :**

بدعت په لغت کې هر هغه نوي پیدا شوي شي ته وایې چې مخکې یې کومه نمونه او مثال نه وي [(۱)]

په اصطلاح کې په داسې طریقه عبادت کول چې اسلامي شریعت یې په اړه حکم نه وي کړی .

یعنې په دین کې بدعت داسې عمل کولو ته وایي چې د هغه په اړه په قرآن او سنتو کې د وجوب او یا هم د استحباب هیڅ حکم نه وي [(۲)] .

او یا په داسې طریقه عبادت کول چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او خلفای راشدینو په طریقه نه وي بدعت بلل کیږي .

الله سبحانه وتعالی فرمایي : [أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ ] [(۳)]

ژباړه:آیا دغه خلکو د الله پاک سره داسې شریکان نیسي چې د دوی د پاره د دین داسې طریقې غوره کړي چې الله پاک د هغه اجازه نه ده کړې .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : علیکم بسنتي و سنة الخلفاء

---

[(۱)]- البدعة ضوابطها وأثر السیء في الأمة ص ۱۳/ دوکتور علي بن محمد ناصر الفقهي، موسوعة الفهیة ج ۸ ص ۲۱ .

[(2)]- نور السنة ص ۱۸ / دوکتور سعد بن علي بن وهف القحطاني

[(۳)] - سوره الشوری :۲۱ .

الراشدين المهدين من بعدي [١]

ژباړه : او تاسې باید زما په سنتو او د خلفاء راشدینو په سنتو چې هدایت شوې دي (ټینګ) ووسئ .

**د تعریف تشریح :**

هر هغه عبادت د قبول وړ دی کوم چې د اسلامي شریعت د حکم موافق وي ، له ام المؤمنین عایشه ﵂ نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ» [٢]

ژباړه :هر چا چې زمونږ په دین کې څه شی پیدا کړل چې له مونږ څخه نه وي (په اسلام کې نه وي ) پس هغه شی مردود دی ( د قبول وړ نه دی) .

دا حدیث شریف په دین کې یو ستره قاعده او ستر اصل دی ، هر هغه عمل چې د اسلامي شریعت د حکم او امر موافق نه وي ، یعنې په دین کې نوی پیدا شوی عمل چې په دین کې کوم اصل ونلري ( ځکه چې دین پوره شوی دی ) بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده (د دین څخه انحراف دی) حافظ ابن حجر رحمه الله وایي : دا حدیث د اسلام له اصولو څخه یو ستر اصل دی . او امام نووي رحمه الله وایي : ددې حدیث یاد ساتل ضرور دي تر څو د ټولو منکراتو د بطلان لپاره د دلیل په توګه استعمال شي .

---

[١] - رواه أبو داود والترمذي وقال: حديث حسن صحيح.

[٢] - متفق عليه (البخاري و مسلم ).

هر چا چې په دين کې د خپله ځانه يا د بل چا په حکم داسې عبادت اختراع کړ چې په دين کې اصل ونلري مردود او باطل دی ، ځکه فقهې قاعده ده چې : «أن الأصل في العبادات الحظر والمنع»[1]

يعنې: په عبادت کې اصل د اسلامي شريعت حکم دی مګر هر هغه عبادت چې د شرعې خلاف وي شرعې حکم پکې نه وي منع دی ، مردود دی د قبول وړ نه دی.

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم به د جمعه په خطبه کې له حمد او ثنا وروسته داسې ويل :

من يهده الله فلا مضلَّ له، ومن يضل له فلا هادي له، إن أصدق الحديث كتاب الله، وأحسن الهدي هدي محمد، وشرّ الأمور مُحدَثاتُها، وكل مُحدَثة بدعةٌ، وكل بدعة ضلالة، وكل ضلالة في النار [2].

ژباړه : چا ته چې الله هدايت وکړي هغه څوک ګمرا کولی نشي او څوک چې ګمراه کړي نو بل څوک هدايت نشي ورته کولای ، يقيناً رښتنې وينا د الله تعالی کتاب دی او غوره لاره د محمد صلی الله عليه وسلم لاره (سنت ) دي ، او تر ټولو بد او ناوړه کارونه په دين کې نوي پيدا شوي شيان دي او په (دين کې ) هر نو پيدا بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده او او هره ګمراهي به په اور کې وي ( د هرې ګمراهۍ پايله اور دی ).

[1] - قواعد الفقهية – مجلة الاحكام .

[2] – رواه مسلم و النسائي .

**د بدعت د لغوي او اصطلاحي معنى ترمينځ فرق :**

د بدعت لغوي معنى نو پيدا مګر شرعى معنى يې دا ده چې په دين کې د داسې څه رامنځته کول چې شرعي اصل ونلري بدعت بلل کيږي مګر که دا نو پيدا شى په اسبابو ، اختراعاتو او نورو دنيوي امورو کې وي څه حکم لري ؟

فقهي قاعده لرو چې « اصل في الأشياء الاباحة » [١]

ژباړه: په شيانو او اسبابو کې اصل اباحت دى مګر دا چې په هغه کې شرعي ممانعت نه وي .

لقوله سبحانه وتعالى : :[أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً ..][٢] .

ژباړه:آيا نه وينې چې الله تعالى د آسمانانو او ځمکې ټول شيان تاسې ته تابع کړي او خپل ښکاره او پټ نعمتونه يې ټول پر تاسې تمام کړي دي .

مثلاً : يو کس را ولاړ شو او وايي : په جومات کې قاليني او عصري فرش اچول بدعت دى . مونږ ورته وايو ولى ؟ هغه وايي ځکه دا شى په دور نبوت کې نه وو ، مونږ ورته وايو د جومات فرش عبادت نه دى بلکي د عبادت وسائل دي او وسائل د زماني په تيريدو سره فرق کوي او په وسائل کې اصل اباحت دى .

يعنې په عبادت کې اصل د اسلامي شريعت حکم دى مګر هغه عبادت چې د شرع خلاف وي شرعې حکم پکې نه وي منع دى ، مردود دى د قبول وړ نه

---

[١] - قواعد الفقهية / شيخنا دوکتور سعد بن ناصر الشتري .

[٢] - سوره لقمان : ٢٠ .

دی.

امام شافعي رحمه الله وايي : "البدعة بِدعتانِ: بدعة محمودة، وبدعة مذمومة. فما وافق السنة فهو محمود، وما خالف السنة فهو مذموم"[١]

بدعت دوه ډوله دی بدعت محموده او بدعت مذمومه ، کوم چې د سنتو موافق وي محمود او کوم چې د سنتو مخالف وي مذموم دی . د هغه دليل د حضرت عمر فاروق ﷺ دغه قول دی :«نعمت البدعة » کوم چې د تراويحو په اړه دی .

ځني وايي : په جماعت سره د شل رکعته تراويح کول بدعت دی ځکه دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم په دور کې نه وې . دا خبره کاملاً غلطه ده .

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم مختلف رکعتونو تراويح ادا کړې او دری ورځې يې په جماعت ادا کړې او بيا يې ددې وېرې څخه ترک کړې چې په امت مې فرض نشي ، د خلفاء راشدينو سنت خپله د جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم سنت دي ځکه چې فرمايي : «عَلَيكُم بِسُنَّتي وَ سُنَّةِ الخُلَفاءِ الرّاشِدينَ» [٢]

د بدعت د استحسان په اړه چې کومو سلفو خبره کړي ده هغه د لغت خبره ده نه د شرعي اصطلاح ، د بدعت په شرعي اصطلاح او شرعي معنی کې يعنې په عبادت کې بدعت گمراهي ده په دې باندې د اهل سنت و الجماعت اتفاق دی او په دا ډول بدعت کې حسن او مذموم ځای نلري .

---

[1]- البدعة / دوکتور فهد العصيمي .

[٢] - رواه أبو داود والترمذي وقال: حديث حسن صحيح.

لکه مبارکفوري رحمه الله چې په «تحفة الأحوذي» کې ليکلي : فقوله صلى الله عليه وسلم "كل بدعة ضلالة" من جوامع الكلم لا يخرج عنه شيء، وهو أصل عظيم من أصول الدين، وأما ما وقع في كلام السلف من استحسان بعض البدع فإنما ذلك في البدع اللغوية لا الشرعية؛ فمن ذلك قول عمر ﷺ في التراويح: نعمت البدعة". اهـ .وقال الحافظ في (الفتح): "البِدْعَةُ أَصْلُهَا مَا أُحْدِثَ على غَيْرِ مِثَالٍ سَابِقٍ، وَتُطْلَقُ في الشَّرْعِ على مُقابَلةِ السُّنَّةِ فَتَكُونُ مَذْمُومَةً، وَالتَّحْقِيقُ أَنَّهَا إنْ كانتْ مما يَنْدَرِجُ تحت مُسْتَحْسَنٍ في الشَّرْعِ فهي حَسَنَةٌ، وَإِنْ كَانَتْ مما يَنْدَرِجُ تحت مُسْتَقْبَحٍ في الشَّرْعِ فهي مُسْتَقْبَحَةٌ.[١]

او ابن عابدين رحمه الله ليکلي : "فقد تكون البدعة واجبة كنصب الأدلة للرد على أهل الفرق الضالة، وتعلّم النحو المفهم للكتاب والسنة، ومندوبة كإحداث نحو رباط ومدرسة، وكل إحسان لم يكن في الصدر الأول، ومكروهة كزخرفة المساجد، ومباحة كالتوسع بلذيذ المآكل والمشارب والثياب"انتهى[٢]

**د بدعت حکم :**

په بدعت کې درجې دی بعضې د مکروه په درجه کې دی بعضې د حرامو او بعضې د شرک اکبر په درجه کې دی اصرار کونکی په بدعت باندې په هر حال کې فاسق دی.

---

[1]- البدعة / دوكتور فهد العصيمي .

[٢] - رد المحتار على الدر المختار/ ابن عابدين :ج 1 ص 376 .

## د بدعت اقسام

بدعت عموماً په دوه ډوله دی بدعت حقیقي او بدعت اضافي .

**اول حقیقي بدعت:**

هغه بدعت دی چې په اړه یې هیڅ شرعي دلیل نه وي نه له قرآنکریم څخه نه له سنتو څخه او نه هم له اجماع څخه بلکي د اسلامي شریعت خلاف وي، چې څو مثالونه یې دا دي[1] .

رهابنیت او په عبادت کې مبالغه کول، الله تعالی ته د نږدیوالی په نیت په ځان باندې حلال حرام ګرځول لکه: د نکاح څخه مخ اړول ، لقوله سبحانه وتعالی : [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تُحَرِّمُواْ طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللّهُ لَكُمْ وَلاَ تَعْتَدُواْ إِنَّ اللّهَ لاَ يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ] [2]

ژباړه : اي مؤمنانو ! مه حراموئ تاسې هغه شیان چې الله تعالی ستاسې لپاره حلال کړي دي او تیری مه کوئ ، یقیناً چې الله پاک له (حدودو) څخه تیریدونکي نه خوښوي .

یا په لمانځه کې د رکوع او سجدو د شمیر زیاتول ، د فرض لمانځه د رکعتونو زیاتول .

او یا په ځان باندې سختي راوستل د تقرب الی الله په نیت لکه د شیعه ګانو وهل په عاشورا کې .

او یا د عقل تحکیم او د شرعي نصوصو ترک کول حلال حرام او حرام

---

[1] - الموسوعة الفقهية ج ٨ ص ٣٢ .

[2] - سوره المائده: ٨٧ .

حلال ګرځول او د اسلامي شریعت پر ځای په وضعي قوانینو فیصلې کول ،لکه د نن عصر غربي ډیموکراسي.

وقد جاء في موسوعة الأديان والمذاهب المعاصرة : "ولا شك في أن النظم الديمقراطية أحد صور الشرك الحديثة (أو البدعة) ، في الطاعة ، والانقياد ، أو في التشريع ، حيث تُلغى سيادة الخالق سبحانه وتعالى ، وحقه في التشريع المطلق ، وتجعلها من حقوق المخلوقين ، والله تعالى يقول:[مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآَبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ..... ] [1].

ژباړه: په دې کې شک نشته چې د ډیموکراسۍ نظام په اطاعت ، پیروی او شریعت کې یو معاصر شرک او بدعت دی داسې چې د (حلال او حرام او حکم ) حق چې خاص الله تعالی لره دی مخلوق ته ي حواله کړی دی ، الله تعالی فرمايي :{عبادت نه کوئ تاسې پرته له الله مګر د څو نومونو چې نومنونه مو ایښي دي تاسې او ستاسې پلرونو په هغو ، نه دی نازل کړی الله په هغو باندې څه دلیل او حجت ، نه دی حکم (د حلال او حرام ګرځولو ، قانون او شریعت جوړولو د هیچا ) مګر خاص الله تعالی لره دی } .

[1]- موسوعة الاديان و المذاهب المعاصره ١٠٦٦/٢ .

**دوهم اضافي بدعت :**

بدعت اضافي داسې بدعت دی چې اصلاً په هغه باندې دليل وي مګر د کيفيت ، تفصيل او احوالو او اوقاتو له مخې په هغه باندې هيڅ دليل نه وي .

لکه : يو کس د ښه خوراک توان لري مګر دی د تقرب الى الله په نيت په ځان سختي کوي .

او د ضرورت پرته په جامه او لباس کې اقتصار کول ، د وس او توان سره سره يوازې يوه جوړه کالي اغوستل او خرابه جامه اغوستل چې په دې کې هم تشديد او سختي ده او همدارنګه د شهرت قصد پکې دی .

و من ذالک الاقتصار من المأكول على أخشنه و أفظعه لمجرد التشديد لا لعرض سواه ، فهو من النمط المذكور ، لان الشرع لم يقصد الى تعذيب النفس في التكليف ، و هو ايضاً مخالف لقوله صلى الله عليه وسلم « ان لنفسک عليک حقاً ).

و من ذالک الاقتصار فى الملبس على الخشن و من غير ضرورة ، فانه من قبيل التشديد و التنطع المذموم ، و فيه ايضاً من قصد الشهرة ما فيه [1]

يا له يو چا سره ګرمې او يخې اوبه دواړه وي او هوا سړه وي د ګرمو اوبو پر ځای په يخو اوبو باندې اودس کوي په دې نيت چې ثواب مې زيات شي داسې کول د عذر پرته پخپل ځان سختي اچول دي .

---

[1] - دراسات في البدعة و المبتدعين ص ٣٣٩/ شيخ ابى عبدالله محمد بن سعيد رسلان ، البدعة ضوابطها وأثر السىء في الأمة ص ١٤/ دوكتور علي بن محمد ناصر الفقهي استاد الجامعة المدينة المنوره .

الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلدِّينِ مِنۡ حَرَجٖ﴾ [1] .

ژباړه: او نه يې دى ګرځولى په دين کې پر تاسې څه حرج او مشقت .

مګر په يخنۍ کې په يخو اوبو باندې اودس کول چې ګرمي اوبه نه وي په حديث شريف کې زيات فضيلت ذکر شوى دى .

او همدارنګه د عبادت په کيفيت ، احوالو او اوقاتو کې د دليل پرته مبالغه او زيادت کول بدعت اضافي بلل کيږي ، مثلاً کوم اذکار چې شمير او وخت يې نه وي ټاکل شوى د هغه لپاره د شمير او وخت الزام .

او همدارنګه بدعت په ديني او دنيوي باندې ويشل شوى دى :

ديني بدعت په څو قسمه دى :

**لومړى قسم :**

لومړى قسم د بدعت «المکفره» په نوم ياديږي هغه بدعت دى چې مرتکب يې له ايمان څخه وځي لکه : د الله تعالى پرته د بل چا عبادت کول چې شرک اکبر بلل کيږي لکه : د غير الله لپاره سجده کول ، دعا کول ، استغاثه ، ذبح کول او نور .

**دوهم قسم :**

حرام او مکروه بدعت ټول هغه کارونه چې د عبادت او تقرب الى الله په نيت تر سره شي مګر په اړه يې شرعي دليل نه وي بدعت محرم بلل کيږي ، جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : " و إياکم و محدثات الأمور فإن کل بدعه ضلاله " و قوله عليه الصلاة و السلام " من عمل

[1] - سوره الحج :۷۸ .

عملاً ليس عليه أمرنا فهو رد ".

**بدعت دنيوي :**

په دنيوي ژوند ، اختراعاتو ، وسائلو او نورو کې د جلب مصلحت په نيت باک نلري په هغه صورت کې چې د اسلام او مسلمانانو پر خلاف او ضرر نه وي ، په عاداتو کې بدعت په جايز او ناجايز ويشل شوی دی ، په خوراک ، څښاک ، خوب او نورو کې اسراف کول مکروه دي .

## د بدعت پيژندلو مهم قواعد

لومړی اصل : د اسلامي شريعت خلاف طريقه سره الله تعالی ته نږيوالی او تقرب ، چې دا اصل لاندې لس قواعد لري[1] :

## لومړی قاعده

هر هغه عبادت کوم چې په موضوع او مکذوب (درواغ) روايت سره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته منسوب شوی وي مردود او بدعت دی ځکه موضوع روايت مردود دی او شرعي حجت نه بلل کيږي .

## دوهمه قاعده

هر هغه عبادت چې شرعي اصل ونلري بلکي د يو چا په رأی او هوا او نفسي غوښتنې باندې ولاړ وي بدعت دی .

## دريمه قاعده

هر هغه فعل کوم چې جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم ترک کړی

[1]- قواعد معرفة البدعة / محمد بن حسين الجيراني .

وي نو پر مونږ یې اتباع واجب ده ، لکه د اختر د لمانځه د پاره د آذان او اقامت ترک کول او همداسې د صفا او مروه تر مینځ له سعی وروسته د لمانځه ترک کول .

## څلورمه قاعده

کوم عمل چې صحابه کرامو ، تابعینو او تبعه تابعینو ترک کړی وي نو د هغه کار تر سره کول بدعت دی لکه : د مولود شریف لمانځنه کول بدعت دی ځکه صحابه کرامو او تابعینو مولود نه دی لمانځلی ، صحابه کرامو ، تابعینو د مشرکینو او اهل کتابو په اخترونو کښون ترک کړی نو په هغه کې کښون کول بدعت دی .

## پنځمه قاعده

هر هغه عبادت چې په شریعت کې په مقید صفت سره راغلی وي د هغه د صفت تغیرول بدعت دی لکه :

۱- په وخت کې مخالفت کول لکه : قرباني کول د اختر د ورځو پرته نورو وختونو کې .

۲- په ځای کې مخالفت لکه : د نارینه لپاره د جومات پرته بل ځای اعتکاف کول .

۳- په جنس کې مخالفت کول لکه : د غوایي ، اوښ او بل حیوان پر ځای د آس قرباني کول .

۴- په عدد او شمیر کې مخالفت کول لکه : د دوو رکعتونو فرض لمونځ پر ځای دری رکعته ادا کول .

۵- په ترتیب کې مخالفت کول لکه په اوداسه کې لومړي پښې مینځل او بیا لاسونه مینځل او بیا مسحه کول .

## شپږمه قاعده

په هر هغه عمل سره تقرب الی الله تر سره کول کوم چې شرعاً منع او حرام وي ، لکه :
د ځنو بدعتي صفیانو ساز او رقص ، د ذکر سره د ساز او موسیقۍ او رقص تر سره کول او بیا دا ویل چې مونږ د الله په مینه کې مست یو .
او په عاشورا کې شیعه د امام په نوم خیراتونه ، ځان وهل او تر نیمو شپو پورې بې اصله عبادات کول.
او یا د تقرب الی الله لپاره د کافرانو مشابهت کول .

## اوومه قاعده

د تقرب الی الله لپاره داسې عادات او معاملات تر سره کول کوم چې شریعت یې حکم نه وي ورکړی .
لکه : د زهد او تقوی په نیت د صوف (وړیو ) استعمال .
د تقرب الی الله په نیت د ځنې شیانو نه خوړل او یا هم د نکاح څخه مخ اړول .

## آتمه قاعده

هر هغه عبادت چې د شرعي قواعدو او مقاصدو مخالف وي بدعت دی .
لکه : د سنتو مخالفت کول ،مثلاً : د روژې لپاره افطار نه کول او هغه لپاره له لمانځه څخه وروسته افطار ، نوافل د کور پر ځای په جومات

غوره او افضل ګڼل .

د جمعې شپه د عبادت لپاره خاص کول او نور .

## نهمه قاعده

په عبادت کې غلو او زیادت کول کوم چې شریعت په هغه باندې حکم نه وي کړی لکه : ټوله شپه عبادت او د خوب ترک کول .

په لویو ګاڼو جمرې کول حال دا چې د هغه اندازه به د ناخو د دانې په اندازه وي.

په اوداسه کې وسواس او اندام مینځلو کې زیادت او اصراف او سختي کول ، کچېرې یو کس خپل اندامونو د دریو ځلو څخه زیات په دې نیت مینځي چې ثواب لري بدعت دی مګر که د وسواسو له امله یې له درې ځله څخه زیات منځې مکروه عمل دی د اوداسه ثواب کموي .

## د بدعت او ګناه تر مینځ فرق

بدعت او ګناه دواړه حرام او د اسلامي شریعت له حدودو څخه انحراف دی .

ګناه کوونکي خپل ځان مجرم بولي او په دې باندې اعتراف کوي چې ما د اسلامي شریعت حدود مات کړي دی د توبې او رجوع فکر ورسره وي ، مګر بدعت کوونکی خپل ځان په سمه لار بولي او خپل بدعت شریعت ته منسوبوي د رجوع او توبې هیڅ فکر ورسره نه وي نو په همدې خاطر بدعت له ګناه څخه خطرناک دی .

## د بدعت د خپرېدو اسباب

۱- د مسلمانانو د مشرانو او حاکمانو غفلت او د خلکو اصلاح ته توجه نه کول .

۲- د دعوت الی الله أمر بالمعروف او نهی عن المنکر پرېښودل .

۳- د بدعتي فرقو او ډلو ظهور لکه : شیعه ، خوارج ، قادیاني فرقه ، بدعتي صوفیان او نور .

۴- د مسلمانانو د ځینو علماء سرتېټي خپلو امراء او حاکمانو ته او د حق له بیان څخه مخ اړول .

۵- جهل ، د شرعي علم او شرعي احکامو څخه ناخبري .

۶- د علم پرته په دیني مسائلو او احکامو کې خبرې .

۷- مذهبي تعصبات .

۸- په ټولنه کې د نا روا دودونو او رواجونو پیروي کول.

۹- د هوا او خواهش پیروي .

۱۰- یوازې په عقل باندې اعتماد کول .

۱۰- د کفارو سره مشابهت او د هغوی تقلید کول .

۱۱- په أشد ضعیف او موضوع روایت باندې اعتماد .

۱۲- په دین کې غلو او افراط د بدعت د خپرېدو ستر سبب دی .

# د بدعت خطرناکې پايلي

۱ -د بدعت اعمال مردود دي يعنی د قبول وړ نه دي:

پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي :«مَنْ أَحْدَثَ فِى أَمْرِنَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ » [۱].

ژباړه: هر چا چې زمونږ په دين کې څه شی پيدا کړل چې له مونږ څخه نه وي (په اسلام کې نه وي ) مردود دی.

۲ -بدعتي تر هغه چې په بدعت لګيا وي توبه يې نه قبليږي نو ځکه ددی ويره شته چې په بده خاتمه له دنيا څخه رحلت وکړي ، پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي :

«إن الله حجب التوبة عن صاحب کل بدعة حتی يدع بدعته»[۲]

ژباړه : الله تعالی تر هغې پورې د هر بدعت کوونکې توبه نه قبلوي تر څو چې هغه ترک نه کړي.

۳ -بدعتي حوض ته نشي تلای او د رسول الله صلی الله عليه وسلم له شفاعت څخه بې برخې وي.

پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي : «أَنَا فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ، لَيُرْفَعَنَّ إِلَيَّ رِجَالٌ مِنْكُمْ حَتَّى إِذَا أَهْوَيْتُ لأُنَاوِلَهُمُ اخْتُلِجُوا دُونِى فَأَقُولُ :أَىْ رَبِّ

[۱] - متفق عليه .

[۲] - الطبراني .

أَصْحَابِى. يَقُولُ: لاَ تَدْرِى مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ»[1].

ژباړه: زه تاسې نه مخکې حوض ته رسيږم او له تاسې څخه ځنې خلک ښکاره شي او نابېره بيرته ورک شي ، وايم : ای ربه ! زما ملګري دې څه کړل ؟ وبه ويل شي نه پوهيږې چې وروسته له تا نه هغوی څه کړي دي.

او په بل روايت کې دي : «إِنَّكَ لاَ تَدْرِى مَا بَدَّلُوا بَعْدَكَ فَأَقُولُ: سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ بَدَّلَ بَعْدِى»[2]

ژباړه: يقيناً ته نه پوهيږې چه وروسته له تا څخه څومره عوض او تغير شوي ، وايم به : څوک چې وروسته له ما نه تغير شوی وي له ما نه دې لرې وي.

۴ -ګناه به د هر هغه چا د قيامت تر ورځې د بدعت رواج کونکي پر غاړه وي چا چې دده په بدعت عمل کړی وي ځکه چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي :« ... وَمَنْ سَنَّ سُنَّةً سَيِّئَةً كَانَ عَلَيْهِ وِزْرُهَا وَمِثْلُ وِزْرِ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ غَيْرِ أَنْ يُنْتَقَصَ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَىْءٌ»[3].

ژباړه: هر چا چې په اسلام کې د ناوړه او بدې لارې تأسيس وکړ د هغه

---

[1] - رواه البخاري .

[2] - رواه البخاري .

[3] - رواه مسلم .

ګناه او هر چا چې وروسته له هغه څخه په هغه عمل وکړ دده پر غاړه وي بې له دې څخه چې د هغوی له ګناهونو څه کم شي.

۵ -بدعت رواج کونکی او بدعتي ملعون دی.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمايي : «مَنْ أَحْدَثَ فِيهَا حَدَثًا، أَوْ آوَى مُحْدِثًا، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ» [۱].

ژباړه: هرچا چې په دین کې بدعت را منځته کړ یا یې بدعت ګر ته پناه ورکړه په هغه د الله تعالی ،ملایکو او ټولو خلکو لعنت وي.

۶ -بدعت ګمراهي ده او دهرې ګمراهۍ پايله دوزخ دی ځکه پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمايلي» :كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ، وَكُلُّ ضَلَالَةٍ فِي النَّارِ» [۲]

ژباړه: هر بدعت ګمراهي ده او د ټولو ګمراهيو پايله دوزخ دی.

---

[۱]- رواه البخاري و مسلم .

[۲]- رواه مسلم ، ابن الماجه و ابؤداود ، شرح حديث ابن سابق رحمه الله .

# دوهم فصل

# اتباع سنت

**تعریف :**

سنت په لغت کې د تللو مسیر او لارې ته وایي هغه که ښه وي یا بد لکه څنګه چې په حدیث شریف کې راغلي : « مَنْ سَنَّ فِي الإِسْلامِ سُنَّةً حَسَنَةً فَعُمِلَ بِهَا بَعْدَهُ كُتِبَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ مَنْ عَمِلَ بِهَا وَلا يَنْقُصُ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْءٌ وَمَنْ سَنَّ فِي الإِسْلامِ سُنَّةً سَيِّئَةً فَعُمِلَ بِهَا بَعْدَهُ كُتِبَ عَلَيْهِ مِثْلُ وِزْرِ مَنْ عَمِلَ بِهَا وَلا يَنْقُصُ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْءٌ .»[١]

ژباړه : (چاچې په اسلام کې د ښې لارې بنسټ کیښود او د ده څخه وروسته نورو خلکو په هغه باندې عمل وکړ نو د ده لپاره به د عمل کوونکو پشان اجر وي او د عمل کوونکو له اجر څخه به څه نه کمیږي، چا چې په اسلام کې د بدې او ناوړې لارې بنسټ کیښود د هغه ګناه او هر چا چې وروسته له هغه څخه په هغه باندې عمل وکړ دده پر غاړه وي بې له دې څخه چې د هغوی له ګناهونو به څه نه کمیږي) .

او په اصطلاح کې هر هغه قول ، فعل ، تقریر او صفات چې رسول صلی الله علیه وسلم ته منسوب شوي وي سنت بلل کیږي او سنت د مرفوع

[١]- رواه مسلم : ١٠١٧ .

حديث مترادف هم دى لكه دا حديث شريف : يَا أيها الناس، إِنِّي قَدْ تَرَكْتُ
فِيكُمْ مَا إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ فَلَنْ تَضِلُّوا أَبَدًا كِتَابَ اللَّهِ ، وَسُنَّي [١]
ژباړه : ( اى خلكو ! يقيناً ما تاسې ته دوه شيان پرېښي كه مو په هغو باندې منګولې ونيښلولې نو هيڅكله به ګمراه نشئ (دا دوه شيان) د الله تعالى كتاب او زما سنت دي) .

✓ د رسول صلى الله عليه وسلم قول :

هر هغه وينا چې جناب رسول صلى الله عليه وسلم ته منسوب شي يا يې له هغه څخه روايت شوې وي قول بلل كيږي .
مثال : حضرت عمر بن الخطاب ﷺ وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «إنما الأعمال بالنيات.. » [٢].

✓ د رسول صلى الله عليه وسلم فعل :

هر هغه كار او عمل چې رسول صلى الله عليه وسلم ته منسوب وي فعل بلل كيږي .
مثال : بى بى عايشې ﷺ روايت نقل كړى چې : «كان رسول الله صلّى الله عليه وسلم إذا ركع لم يرفع رأسه ولم يُصَوِّبْهُ، ولكن بين ذلك» [٣].

---

[١] - مستدرک الحاكم ١٧٢/١

[٢] - رواه البخاري

[٣] - متفق عليه

ژباړه : رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله رکوع کوله سر به یې ( له شا سره ) برابر ؤ نه پورته ؤ او نه ټیټ .

✓ د رسول صلی الله علیه وسلم تقریر :

کوم کار او وینا چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور کې صحابه کرامو رضی الله عنهم تر سره کړي وي او جناب په هغه سکوت او اعتراف کړی وي او هغوی یې ورڅخه منع کړي نه وي تقریر بلل کیږي برابر خبره ده که دا تقریر په سکوت ، اعتراف ، عدم انکار ، د خوښی اظهار او ښه بللو سره وي ځکه تقریر پر جواز دلالت کوي .

مثال : رسول صلی الله علیه وسلم ځینو صحابه کرامو ته ویلي وو چې :« لَا يُصَلِّيَنَّ أَحَدٌ الْعَصْرَ إِلَّا فِي بَنِي قُرَيْظَةَ. فَأَدْرَكَ » ( د تاسې څخه به څوک د ماذدیګر لمونځ نه ادا کوي مګر په بني قریظه نومې ځای کې ) .

نو بیا د ماذدیګر د لمانځه وخت راغی ځینو صحابه کرامو په لاره کې لمونځ ادا کړ او ځینو په بني قریظه کې ادا کړ ، کله چې راغلل خپل حال یې جناب رسول صلی الله علیه وسلم ته بیان کړ او هغه د دوی دواړو په عمل باندې سکوت اختیار کړ .

✓ د رسول صلی الله علیه وسلم صفات :

صفات د رسول الله صلی الله علیه وسلم له اخلاقو ، خوی او د ده د مبارک بدن د وصف څخه عبارت دي .

د اخلاقو مثال : ابن عباس ﷺ روایت کړی دی چې :« کان رسول الله- صلی الله علیه وسلم -أجود الناس بالخیر ».

يعنې : رسول الله صلى الله عليه وسلم تر ټولو خلکو د خير او خيرات په کار کې مخکې وو .

د خَلقيه صفاتو مثال : صحيحين روايت نقل کړی چې :« أن النبي- صلى الله عليه وسلم كان أحسن الناس وجهًا....».

يعنې : يقيناً د نبی صلى الله عليه وسلم مخ مباک تر ټولو خلکو ښکلی ؤ .

## د سنت او سيرت ترمينځ فرق

سيرت په لغت کې هغه لارې او مسير ته وايي چې يو شخص پر هغه باندې تلل کوي ، په اصطلاح کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ژوند ټول احوالو له پيدايښت څخه تر وفات پورې په تفصلي توګه بحث کوي .

سيرت د سنتو په پرتله شامل دی ځکه سيرت د جناب د ټولو احوالو څخه د پيدايښت څخه نيولی بيا تر وفات پورې بحث کوي مګر سنت د وحی له نزول څخه پيل تر وفات پورې بحث کوي . او سنت يو شرعي حجت او دليل بلل کيږي .

او بل دا چې د سيرت علماء د سيرت په اسنادو کې زيات شدت نه کوي خو د سنتو په اسنادو کې شدت کيږي ځکه هغه شرعي حجت دی د عقائدو ، معاملاتو او نورو احکامو د ثبوت حجت بلل کيږي .

# د سنتو د اتباع فضیلت

**د قرآنکریم په رڼا کې :**

الله تعالی فرمايي: ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا ﴾[1].

ژباړه: یقینًا تاسو لپاره په (سنتو د ) رسول الله کې ډېره ښه اقتدا ده، د هغه چا لپاره چې د الله او د وروستنۍ ورځې امېد لري او الله ډېر زیات یادوي.

﴿ قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ *قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لاَ يُحِبُّ الكَافِرِينَ ﴾[2].

ژباړه: (ای نبي هغوی ته ووایه!): که چېرې يئ تاسو چې له الله سره مینه کوئ، بیا نو زما اتباع وکړئ، الله به له تاسو سره مینه وکړي او تاسو ته به ستاسو ګناهونه وبخښي او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی، (ای نبي!) ته ووایه: د الله اطاعت کوئ او د (هغه د) رسول، بیا که دوی وګرځېدل، نو بېشکه الله له کافرانو سره مینه نه کوي.

﴿ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ العِقَابِ ﴾[3].

---

[1]) - سوره الأحزاب:۲۱.

[2]- آل عمران: ۳۱ -۳۲.

[3]- الحشر : ۷ .

ژباړه: او رسول چې تاسو ته څه هم درکړي، نو هغه واخلئ او له څه نه چې هغه تاسو منع کړي، نو تاسو منع شئ او له الله نه ووېرېږئ، بېشکه الله ډېر سخت عذاب والا دی.

﴿ مَن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَمَن تَوَلَّى فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ﴾[1].

ژباړه: چا چې د رسول اطاعت وکړ، نو يقينًا هغه د الله اطاعت وکړ او څوك چې (له اطاعت نه) وګرځېده، نو ته مونږه پر هغوی باندې څارونکی (نګهبان) نه يې لېږلی.

﴿ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُوْلَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُوْلَئِكَ رَفِيقًا *ذَلِكَ الفَضْلُ مِنَ اللَّهِ وَكَفَى بِاللَّهِ عَلِيمًا ﴾[2].

ژباړه: او څوك چې د الله او د (هغه د) رسول اطاعت وکړي، نو دغه کسان به له هغو خلقو سره وي په چا باندې چې الله انعام کړی دی، چې نبيان، او صديقين او شهيدان او صالحان دي او دغه خلق ښه ملګري دي ، دا د الله له جانبه (پېرزوېنه او) فضل دی او الله کافي دی، ښه پوه.

**د نبوي احاديثو په رڼا کې :**

له ابی هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي «كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلاَّ مَنْ أَبَى». قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَنْ

[1]- النساء : ٨٠ .

[2]- النساء : ٦٩- ٧٠ .

يَأْبَى؟ قَالَ: «مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبَى»[۱] .

ژباړه:زما ټول امتيان جنت ته داخليږي مګر هغه کس چې سرغړونه وکړي ، صحابه کرامو عرض وکړ : ای د الله رسوله ! کوم کس سرغړونه کوي ؟ وېې فرمايل : هر چا چې زما اطاعت وکړ جنت ته به داخل شي او چا چې زما اطاعت ونه کړ نو هغه په حقيقت کې زما څخه سرغړونه وکړه .

له ابی سعيد الخدري ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:«مَنْ أكل طيبًا، وعمل في سنَّةٍ، وأَمِنَ الناس بَوَائِقه دخل الجنة»[۲] .

ژباړه : د چا چې رزق حلال وي او عمل يې د سنتو موافق وي او خلک يې له ضرر څخه په امن وي نو دا کس به جنت داخليږي .

## د فساد په زمانه کې په سنتو باندې د تمسک فضيلت

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل امت ته خبرداری ورکړی دی چې په آخره زمانه کې به زياتې فتنې پيدا شي ، مونږ په داسې زمانه کې قرار لرو چې ټوله نړۍ فتنو نيولې ده ، هر سهار او هر ماښام نوې نوې فتنې را پيدا کيږي .

خو د دغو ټولو فتنو څخه د نجات يوازنی لاره په قرآن او سنتو باندې تمسک کول دي.

[۱]- رواه البخاری ۷۲۸۰ .

[۲]- رواه الحاکم بالسناد صحيح ۱۰۴/۴

يا أيها الناس، إِنِّي قَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ فَلَنْ تَضِلُّوا أَبَدًا كِتَابَ اللَّهِ ، وَسُنَّتِي([1] ).

وقال: فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الْمَهْدِيِّينَ الرَّاشِدِينَ تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ ) [2].

ژباړه:ای خلکو يقيناً ما په تاسې کې دوه شيان پريښې که تاسې په هغو باندې ټينګ ووسئ هيڅکله به ګمراه نشئ ، د الله تعالی کتاب او زما سنت او فرمايي : (پس تاسې زما په سنتو او د خلفاء راشدينو په سنتو چې هغوی هدايت شوي دي ټينګ ووسئ او هغه په عقلي غاښونو ونيسئ او تاسې به په دين کې له نوي شيانو لرې اوسئ ځکه په دين کې هر نوی شی بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده).

او واقعاً په داسې يوه زمانه کې چې ټوله نړۍ فساد او فتنو په سر باندې اخستې وي په سنتو باندې تمسک اختيارول ستر اجر لري ، ځکه چې په دغه زمانه کې په اسلام باندې پوره پابند خلک لږ وي او دوی په غربت کې ژوند تيروي .

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: «بَدأ الإسلام غريبا وسيعود كما بدأ غريبا فَطُوبَى لِلغُرَبَاءِ . قِيلَ : مَن هُم يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ : الذِينَ يَصلُحُونَ إِذَا فَسَدَ النَّاسُ »[3] .

[1]- مستدرک الحاکم ۱۷۲/۱

[2]- رواه أبو داود ۴۶۰۷.

[3]- رواه مسلم : ۱۴۵ .

ژباړه: اسلام بې كسه او غريب شروع شوي دی او بيا به بي كسه او غريب شي لكه څنګه چه شروع شوی ؤ .

همدارنګه جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «العِبَادَةُ فِي الهَرْجِ كهِجْرةٍ إِلَيَّ »([1]) .

ژباړه : د فتنو په زمانه كې عبادت كول داسې ثواب لري لكه زما طرف ته هجرت كول.

يعنې داسې دی لكه اولينو مهاجرينو چې د دين د ساتنې لپاره زما طرف ته (مدينې منورې ته )هجرت كړی وو .

او جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: «إِنَّ مِنْ وَرَائِكُمْ أَيَّامَ الصَّبْرِ ، الصَّبْرُ فِيهِ مِثْلُ قَبْضٍ عَلَى الْجَمْرِ ، لِلْعَامِلِ فِيهِمْ مِثْلُ أَجْرِ خَمْسِينَ رَجُلًا يَعْمَلُونَ مِثْلَ عَمَلِهِ ، - وَزَادَنِي غَيْرُهُ - قَالَوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْهُمْ ؟! قَالَ : أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ » [2] .

ژباړه : د تاسې څخه وروسته د صبر ورځې دي ، چې په هغه وخت كې صبر كول داسې دي لكه پخپل موټي كې د اور سكروټه نيول ، په داسې زمانه كې د سنتو موافق عمل ثواب د پنځوسو كسانو د عمل ثواب لري . صحابه كرامو وويل : اى رسول الله د هغوی د پنځوسو كسانو ؟ ويې فرمايل : د تاسې د پنځوسو كسانو .

يعنې پنځوس كسان د نن زمانې نه بلكي د صحابه كرامو د پنځوسو

[1]- رواه مسلم .

[2]- رواه أبوداود ۴۳۴۱ ، الترمذي ۳۰۵۸ و سلسلة الصحيحة ۴۹۴

کسانو او څه وخت چې فتنې او بدعات او منکرات په خلکو کې زيات شي .
نو د دغه وخت پر علماوو باندې لازمه ده چې د فتنو پر وړاندې سکوت اختيار نکړي ځکه چې داسې کول سخت خطرناک دي .

## د هرعبادت د قبول لپاره شرط

اول :دا چې په عبادت کې به اخلاص وي يعنې خاص د الله تعالى لپاره به وي، منافقت او ريا به پکې نه وي، لقوله سبحانه وتعالى :[وَمَا أُمِرُوا إِلا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ] [(١)] .

ژباړه:او هغوى ته پرته له دې هيڅ امر نه وو شوى چې: عبادت وکړئ د الله داسې چې خالص او سوچه کوونکى وي الله لره (د شرک او نفاق څخه پاک) په داسې حال کې چې را ګرځېدونکي وي د باطل څخه حق ته او لمونځونه وکړي، زکاتونه ورکړي او همدا محکم او مستقيم او روغ دين دى .

دوهم- دا چې په عبادت کې به د رسول الله صلى الله عليه وسلم متابعت وي ځکه چې الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ][(٢)] .

ژباړه: او هغه څه چې رسول يې تاسې درکوئ واخلئ او له هغه څه نه چې تاسې منع کوي ډډه وکړئ او له الله څخه ووېرېږئ، يقيناً چې الله تعالى

١- سوره البينه : ٥ .
٢- سوره الحشر : ٧

سخت عذاب ورکوونکی دی .

اعمال شمیرل کیږي نه بلکي د اخلاص او د شریعت د متابعت له مخې تلل کیږي ، لقوله سبحانه وتعالی :[فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ * فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ] [1].

ژباړه : پس د هر چا چې درونډ شي وزن (د عملونو) نو هغه به وي په ښه ژوند کې چې راضي به وي ( په جنت کې).

د اعمالو کثرت مطلب نه دي بلکي ښوالی یې د اخلاص او اتباع له مخې مقصد دی ، لقوله سبحانه وتعالی : [الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلاً وَهُوَ الْعَزِيزُ الْغَفُورُ] [2].

ژباړه: هغه ذات چې مرګ او ژوند یې پیدا کړی دی، د دې لپاره چې تاسو وازمايي چې په تاسو کې د عمل په لحاظ کوم یو ډیر ښه دی۔ او هم دی ښه غالب، ډیر بخښونکی دی.

عملونه نه شمیرل کیږي بلکي عملونو د اخلاص او اتباع له مخې تلل کیږي ، د عملونو زیادت مقصد نه دی بلکي ښه والی (اخلاص او اتباع) مقصد دی هغه عمل د قبول وړ دی چې په هغه کې اخلاص او اتباع وي.

[1]- سوره القارعه :۶-۷

[2]- سوره الملک :۲

## د اهل سنت و الجماعت صفات

سنت مو بیان کړل او اوس د سنتو لارویان (اهل سنت و الجماعت) بیانوو یعنې هغه کسان چې د سنتو او سیده شریعې لارې پابند دي او د هغوی نښې بیانوو .

## اهل السنة و الجماعة

اهل سنت او جماعت د حق لارې هغه لارویان دي په کومه لاره باندې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ، صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین ، تابعین رحمهم الله او ائمه اربعه (امام ابوحنیفه ، امام مالک ، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله ) او نور هغه کسان چې د (قرآن او سنتو ) پوره پابند او د امت د خیر القرون په لاره روان وي په هر ځای کې او هر وخت کې چې وي د قیامت تر ورځې پورې اهل سنت و الجماعت یا فرقه ناجیه بلل کیږي .

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم یې صفت داسې بیان کړی دی : « هم من کان علی ما أنا علیه و أصحابي »[۱] .

ژباړه : هغوی به زما او زما د صحابه کرامو په لاره روان وي .

او فرمايي : « مَنْ يُرِدْ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللَّهُ يُعْطِي وَلَنْ تَزَالَ هَذِهِ الْأُمَّةُ قَائِمَةً عَلَى أَمْرِ اللَّهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ. أو في روايه حتى تقوم الساعة »[۲] .

---

۱- رواه البخاري .

۲- رواه البخاري .

ژباړه : چا ته چې الله تعالى د خير اراده وکړي نو هغه ته به په دين کې پوهه ور په برخه کوي ، زه (رسول الله ) ويشوونکی یم ( د علم شرعي) ، مګر اصلي ورکوونکی الله تعالى دی ، او دا امت به همداسې د الله تعالى په دين باندې قائم وي او د مخالفانو مخالف به هغوی ته ضرر ونه رسوي تر څو پورې چې قيامت قايم شي .

اهل سنت و الجماعت پخپلې برحقې لارې باندې نومول شوي دي اهل سنت ( هغه کسان چې دوی د سنتو متابعت کوي ) او جماعت ( دوی د الله تعالى په برحق دين باندې را ټول شوي دي) ، حال دا چې نورې بدعتي ډلې د خپل بدعت په نامه باندې نومول شوې دي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :والذي نفسُ محمدٍ بيده لَتَفْتَرِقَنَّ أمتي على ثلاثٍ وسبعين فرقة، واحدةٌ في الجنة، واثنتان وسبعون في النار))، قيل: يا رسول الله، من هم؟ قال: ((الجماعة))[1] .

ژباړه : قسم په هغه ذات چې د محمد نفس د هغه په لاس کې دی ، زما امت به په دری اويا ډلو وويشل شي ، يوازې يوه ډله به په جنت کې وي او دوه اويا ډلې به په دوزخ کې وي . چا پوښتنه وکړه ، يا رسول الله دا کومه ډله ده ، ويې فرمايل : الجماعة ( اهل سنت و الجماعت ).

او په بل روايت کې راغلي اهل سنت او جماعت هغه ډله ده په کوم لاره چې زه او زما صحابه کرام دي « هم من كان على ما أنا عليه و أصحابي »[1] .

[1]- رواه ابن ماجه و ابؤداود بالسناد صحيح .

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم د امت په اجماع باندې تأكيد كړى دى او د تفرقو څخه يې منع فرمايلي : « والجماعة رحمة، والفُرقة عذاب»[٢] .

ژباړه : جماعت رحمت دى او فرقې او ډلې عذاب دى .

او فرمايي : « عليكم بالجماعة وإيَّاكم والفُرقة، فإنَّ الشيطان مع الواحد، وهو مِن الاثنين أبعَدُ، ومَن أراد بحبحة الجَنَّة، فعليه بالجماعة»[٣] .

ژباړه : تاسې ته په جماعت حكم كوم او له تفرقې مو منع كوم ، ځكه چې شيطان له يوازې كس سره دى او د دوو څخه لرې دى او څوک چې د جنت د بحبح اراده لري نو هغه دي له جماعت څخه نه وځي .

پس ويلاى شو چې اهل سنت و جماعت د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم اصحاب ، تابعين ، ائمه او هر څوک چې د هغوى د لارې او منهج پيروان دي تر ورځې قيامت پورې .

سفيان الثوري رحمه الله وايي : إذا بلغك عن رجل بالمشرق صاحب سُنَّة، وآخر بالمغرب، فابعث إليهما بالسلام وادْعُ لهما، ما أقلَّ أهلَ السُّنَّة والجماعة [٤].

---

١- رواه البخاري .

٢- رواه أحمد في المسند.

٣- رواه أحمد في مسنده و قال الحاكم صحيح على شرط الشيخين

٤- شرح اصول الاعتقاد للالكائى ٦۴/١.

ابن تيميه رحمه الله وايي : ومذهب أهل السُّنَّة مذهب قديم معروف قبل أن يَخلُق اللهُ تعالى أبا حنيفة ومالكًا والشافعي وأحمد، فإنَّه مذهب الصحابة الذين تَلقَّوْه عن نبيِّهم صلَّى الله عليه وسلَّم [1].

ژباړه : مذهب د اهل سنت پخوانی مشهور مذهب دی مخکې له دې چې الله تعالی هغوی پیدا کړي چې ابو حنیفه ، مالک ، شافعي او احمد دی چې دا مذهب د صحابه کرامو دی کوم چې نبی صلی الله علیه وسلم نه ورته پاتې دی .

## د اهل سنت و الجماعت مختصر منهج

د اهل سنت و الجماعت منهج او لاره د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام منهج او لاره ده چې ځنې صفات یې په لاندې ډول دي

١- د الله تعالی په اسماء او صفاتو باندې داسې ایمان لرل لکه څنګه چې الله تعالی د خپل نفس لپاره بیان کړي او په صحیح احادیثو ثابت شوي وي پرته له تعطیل او تأویل څخه ، لقوله سبحانه وتعالی : [لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ] [2] .

ژباړه: هغه ته ورته هیڅ شی نشته. د هر څه ښه اوریدونکی او لیدونکی دی .

---

[1]- منهاج السنة ٦٤/٢.

[2]- الشورى :١١.

۲- حکم او فیصله یې یوازې په ما انزل الله ( اسلامي شریعت ) سره ده ، لقوله سبحانه وتعالی : فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا][1] .

ژباړه: نو نه! (ای رسوله) ستا په رب قسم دی چې دوی تر هغه پوره مؤمنان نشي کیدای څو پورې چې تا ته په خپلو ټولو شخړو کې حکم (فیصله کوونکی) کړي او بیا ستا د پریکړو په اړه پخپلو ځانونو کې کوم خپګان و نه مومئ او (دغه پریکړه) په ډیرې خوښۍ سره و مني .

۳- دعوت الی الله سبحانه وتعالی ، أمر بالمعروف او نهی عن المنکر کول ، لقوله سبحانه وتعالی : فرمایي: [قُلْ هَـذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللّهِ عَلَى بَصِيرَةٍ ][2] .

ژباړه:ووایه: دا زما لاره ده، د الله طرف ته بلنه کوم، په ښه بیان او بصیرت سره.

او الله سبحانه وتعالی فرمایي : :[ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ][3] .

ژباړه : بلنه کوه لیاری د رب خپل ته په حکمت او ښکلي نصیحت سره او له دوی سره په هغې طریقې سره مجادله (مباحثه) کوه چې هغه تر ټولو ښه وي.

یعنې د دعوت منهج یې دا دی چې لومړی علم او بیا په حکمت سره دعوت

[1]- سوره النسآء :۶۵ .

[2]- سوره یوسف :۱۰۸ .

[3]- سوره النحل :۱۲۵ .

ورکول هر یو د خپل توان موافق ، حاکم او مشر لره د لاس تغیر او نورو لره د خپل توان موافق د ژبې او زړه تغیر واجب دی .

۴- د دین د نشر لپاره في سبیل الله جهاد کول تر څو خلک د بنده له بنده ګۍ څخه د الله تعالی په بنده ګۍ شامل شي او د کفارو د شر څخه د اسلامي خاورې ساتل او ځمکه د فساد څخه پاکول په ځمکه کې عدل او شریعت قائمول .

۵- د ژوند په ټولو چارو کې معاشرت ، معاملات او اخلاقو کې د شریعت متابعت او په «الولاء و البراء» باندې پابندي .

# دريم فصل

## خپاره شوي بدعتونه

## عقيدتي بدعتونه

١- د خوارجو ډلې بدعت کوم چې په کبيره ګناه باندې د تکفير حکم کوي .
٢- د عقيدې په باره کې د معتزله ، جهميه ، مرجئه ، رافضي ډلې ، قادياني ، اسماعليه او نورو ډلو بدعات .
٣- په هغو ځيزونو باندې تبرک کول کوم چې شرعي اصل نلري .

تبرک د برکت له کلمې څخه اخيستل شوی چې زيادت او کثرت او طلب د خير ته وايي .

تبرک او برکت د الله تعالى د جانبه دی، مسلمان لره ښايي چې دا عقيده ولري چې برکت د الله تعالى د طرفه دی او د هغه (ﷻ) په واک کې دی او د مخلوق له جانبه نه دی .

تبرک په جايز او ناجايز ويشل شوی په کومو شيانو چې د اسلامي شريعت په نصوصو باندې معنوي او ذاتي برکت ثابت دی لکه ليلة القدر د عبادت زيات ثواب ، په مسجد الحرام کې د لمانځه زيات ثواب ، د زم زم د اوبو ذاتي برکت او نور .

ناروا تبرک هغه تبرک دی چې په اسلامي شريعت کې هيڅ اصل نلري، د داسې شي څخه د خير غوښتل او هغه خير او برکت ګڼل چې په اسلامي شريعت کې اصل ونه لري، منع او حرام دی.

لکه: د يوې خاصې چينې مبارک ګڼل او په هغه کې د خلکو لمبل چې ددې

چينې اوبه مبارکې دي او شفا ورکوونکي دي .

د ځينو قبرونو د خاورو او کاڼو مبارک ګڼل، د قبر د خاورو خوړل چې هغه د فلاني فلاني مرض درملنه ده .

د خاصې ونې، نبات، غره او نورو مبارک ګڼل.

د جن د شر د دفع کولو لپاره د ليوه د پوستکي يا هډوکي کارول .

د سترګو د نظر د دفع لپاره د بډرا دودول او نور .

په اکثرو موټرونو کې تسبيح ځړول شوې وي د موټر د حرکت پر مهال موټروان په هغه باندې خپل لاس کشي دا کار مبارک ګڼې له خطر څخه يې د بچ کيدو سبب ګڼي چې دا يو شرکي بدعت دی.

دا هر څه د جاهليت د زمانې ميراث دی کوم چې مشرکانو به تر سره کول، پخپلو لاسونو جوړ کړې بتان، او ځنې کاڼې او ونې به يې مبارک بلل، ځينو قبرونو ته به يې سجدې کولې او د هغوی څخه به يې د خير تمه او عقيده لرله .

د سيرت مشهوره قصه ده: چې مونږ (صحابه) د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره حنين ته لاړو، د مشرکينو د دور په باره کې مو خبرې وکړې، چې د مشرکينو لپاره يو ونه وه چې هغوی به مبارکه بلله په هغه کې به يې خپلې وسلې ځړولې او دغه ونه (ذات انواط) نومېده مونږ په هغه باندې تير شو، نو مونږ رسول الله ته وويل: زمونږ د پاره هم (ذات انواط) وټاکه لکه څنګه چې د مشرکانو د پاره وه، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «الله أکبر! إنها السنن، قلت والذي نفسي بيده، کما قالت بنو

إسرائيل لموسى [اجْعَل لَّنَا إِلَهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ] (١) لتركبن سنن من كان قبلكم» (٢).

ژباړه: الله اكبر (د تعجب لپاره دی، يعني الله لوی دی او د هر قسم شرک څخه پاک او منزه دی)، دا د هغوی طريقه ده د (مشركينو)، قسم مې دې په هغه ذات وي چې زما نفس يې په واک کې دی تاسې ما ته داسې څه وايئ لکه بنی اسرائيلو چې موسی ته ويل [مونږ ته هم د دغو خلكو پشان خدای وټاكه، موسی وويل: رښتيا هم چې تاسې ناپوهه قوم يئ]، نو تاسې د مخكې خلكو (مشركينو) طريقې عملي كول غواړئ.

دا حديث شريف د اسلامي امت د پاره لوی او ستر درس دی، چې داسې شي مبارک گڼل چې د هغه په شريعت کې ثبوت نه وي لکه مخکې مو چې بيان کړل، د مشركينو او جاهليت ميراث وي او د هغه څخه د خير او منفعت، دفع ضرر اراده لري مطلق حرام او دا عمل شرک دی.

۴- د مړو څخه خپل حاجت غوښتل او يا د مړو او غايبو كسانو را بلل او هغوی نه مدد غوښتل : لكه يا فلانی ولي، يا سخي زما دغه حاجت پوره کړې، يا علي مدد، يا پيره را ورسيږه او نور او دا عقيده لرل چې هغوی حاضر او ناظر او د څه كارونو متصرفين دي شرک اكبر دی.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [إِنْ تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ ...] (١).

---

(١)- سوره الاعراب :١٣٨.

(٢)- الترمذي ٢١٨٠ و قال حسن صحيح و احمد ٢١٣٩٠.

ژباړه: كه تاسې را وبولئ نو ستاسې بلنه نه اوري، او كه وايې وري هم نو ستاسې غوښتنې نشي پوره كولاى . او د قيامت په ورځ به ستاسې له شريک نيولو څخه انكار هم وكړي .

شيخ فخر الدين حنفي په رساله كې ليكي :

"ومن ظن أن الميت يتصرف في الأمور دون الله، واعتقد بذلك كفر. كذا في "البحر الرائق".

ژباړه: او كه څوک دا ګمان كوي چې مړي د الله تعالی نه ماسوا متصرف د امرو دي او په دې باندې يې عقيده وي نو دا كفر دی او همدارنګه دا قول يې په بحر الرائق هم ذكر كړی دی .

او قاضي حميد الدين ناكوري هندي په توشيح كې ليكي :منهم الذين يدعون الأنبياء والأولياء عند الحوائج والمصائب باعتقاد أن أرواحهم حاضرة تسمع النداء وتعلم الحوائج، وذلك شرك قبيح وجهل صريح، قال الله تعالى (ومن أضل ممن يدعوا من دون الله من لا يستجيب له إلى يوم القيامة، وهم عن دعائهم غافلون)[٢] .

ژباړه: ځينې د دوی داسې كسان دي چې انبياء، اولياء په وخت د مشكل او سختی كې غواړي (د هغوی نه مدد غواړي) په دې عقيده چې هغوی حاضر او ناظر دي او غږ اوري او په حوائجو (ضروریاتو او مشكلاتو) پوهيږي، دا ډير بد شرک دی او ښكاره جهل دی، الله سبحانه وتعالی

(١)- سوره فاطر :١۴ .

(٢)- سورة الأحقاف: الآيه ۵.

فرمايي :(او څوک دي ډير ګمراه له هغه چا چې بولي بې له الله څخه هغه چې نشي قبلولی هغه لره تر ورځې د قيامته پورې او دغه له دعا او بلنې د دوی بې خبره دي) .

د مافوق اسباب څخه مدد غوښتل يوازې رب العالمين ته خاص دي (اياک نعبد و اياک نستعين ) .

۵- د صالحو کسانو په زيارتونو او مړو باندې توسل کول او د هغه په روی باندې غوښتنې کول د اسلامي شريعت خلاف دي ځکه توسل په اسماء الحسناء او نيکو او صالحو اعمالو باندې جايز دی .

قال أبوحنيفة رحمه الله «يكره أن يقول الداعي أسألك بحق فلان أو بحق أنبيائك ورسلك وبحق البيت الحرام والمشعر الحرام » [1]

يعنې: امام ابوحنيفه رحمه الله وايي: دا سې ويل مکروه او بد دي چې دعا کوونکی وايي په حق د فلاني يا په حق د تا د انبياؤ او رسولانو او يا په حق دبيت الحرام او مشعر الحرام .

وقال أبو يوسف: "وأكره أن يقول بحق فلان أو بحق أنبيائك ورسلك وبحق البيت الحرام والمشعر الحرام"[2] .

يعې: او امام يوسف وايی: دا مکروه او بده ده چې وايي: چې په حق د فلان او په حق د نبی ستا او رسول ستا او بيت الحرام او مشعر الحرام .

(1)- شرح العقيدة الطحاوية ص٢٣۴ , وشرح الفقه الأكبر للقاري ص ١٩٨).

(2)- شرح العقيدة الطحاوية ص ٢٣۴)

وقد قال فيه أبو حنيفة وأصحابه: إنه لا يجوز، ونهوا عنه، حيث قالوا: لا يسأل بمخلوق ولا يقول أحد: أسألك بحق أنبيائك.
قال في " تبيين الحقائق " قال أبو يوسف: أَكْرَهُ بِحَقِّ فُلَانٍ، وَبِحَقِّ أَنْبِيَائِك وَرُسُلِك " انتهى، لأنه " لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ عَلَى اللَّهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى جَلَّ شَأْنُهُ "[١].

ابن تيميه رحمه الله وايي: کچيرې څوک ووايي زه تا ته ستا د نبی په روی سوال کوم او ددې څخه يې داسې اراده او نيت وي چې: زه تاته سوال په روی د هغه ايمان چې ستا په نبی يې لرم او په روی د محبت چې ستا د نبی سره يې لرم او يا داسې نور، نو دا جايز او په دې کې څه اختلاف نشته نو که څوک دا اراده ولرې څه باک نلري، او د سلفو د توسل همدا معنی ده وروسته د هغه د وفات څخه لکه څنګه چې د ځينو صحابه او تابعينو او امام احمد او نورو څخه نقل شوی دی، نو دا حسن او په دې مسئله کې څه اختلاف نشته . مګر زمونږ په زمانه کې ډير خلک ددې معنی او مقصد اراده نلري [٢].
مګر په دې مسئله باندې د عامو خلکو پوهول مشکل دي ځکه چې اکثرو عامو خلکو مقصد ايمان او محبت نه وي بلکې مستقيماً په ذات د رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې توسل کوي چې ددې څه ثبوت نشته .

(١)- بدائع الصنائع " (١٢٦/٥)، فتاوی الهنديه ٣١٨/٥ .
(٢)- قاعدة جليلة ص ١١٩ .

فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي: داسې توسل کول چې پیغمبر یا ولی یا کوم پیر حاضر ناظر ګڼي چې فلانئ ولي، یا پیره را ورسیږه په دې نیت چې هغه ما ته رارسیږي یعنی زما سره مدد کوي حرام دی او شرک دی .

ځکه مونږ او تاسې په هر لمانځه کې دا وایو چې :

[إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ] ،یعنې: خاص تاته عبادت کوو او خاص له تا څخه مدد غواړو[1].

پس د امام ابی حنیفه ، امام ابو یوسف او امام محمد رحمهم الله په شرعي فهم زمونږ عمل دی ځکه د خالصې عقیدې تقاضا همدا ده او بل ددې کار اجازت سد الذرائع ( د حرامو طرف ته د بلنې) سبب ګرځي .

۶- د غیر الله لپاره ذبح کول او یا د غیر الله لپاره نذر منل بدعت او شرک دی ځکه ذبح او نذر دواړه عبادتونه دي او عبادت به یوازې د الله تعالی لپاره وي .

لقوله سبحانه وتعالی: [قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ * لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ][2] .

ژباړه :ووایه (ای محمده!) چې زما لمونځ زما قرباني زما ژوند او زما مرګ یوازې د هغه الله لپاره دی چې رب د عالمیانو دی . شریک نلري یو دی په همدې کار ما ته امر شوی دی او له هر چا زه لومړی سر ټیټوونکی یم .

---

([1])- فتاوي دارالعلوم دیوبند ج ۲ ص ۱۵۳.

([2])- سوره الأنعام: ۱۶۲، ۱۶۳.

**ذبح په اصل کې په څلور قسمه ده :**

الف- د الله سبحانه وتعالی د تقرب لپاره د پاک حیوان ذبحه کول لکه: د لوی اختر قرباني، د حج قرباني، د فقراء او مساکینو لپاره صدقه کول چې دا ډولونه د الله تعالی عبادت دی .

ب- د مېلمنو لپاره د څاروي ذبحه کول او همدارنګه د واده د ولیمې او د عقیقې لپاره د حیوان ذبح چې حکم یې مستحب او سنت دی چې دا هم عبادت دی.

ج- د څاروي ذبح کول د هغه د غوښو خرڅول د تجارت په نیت لکه قصابي او نور .

د- د مخلوق د تقرب او نږدېوالی لپاره ذبحه کول چې دا شرک اکبر دی ځکه ذبحه عبادت دی د الله تعالی پرته بل چاته ذبحه کول شرک دی او د داسې څاروي غوښه مرداره ده .

جاء في حاشيه ابن عابدين :

لَوْ ذَبَحَ لِقُدُومِ الأَمِيرِ وَنَحْوِهِ مِنَ الْعُظَمَاءِ (تَعْظِيمًا لَهُ) حَرُمَتْ ذَبِيحَتُهُ، وَلَوْ أَفْرَدَ اسْمَ اللَّهِ تَعَالَى بِالذِّكْرِ ؛ لأَنَّهُ أَهَّلَ بِهَا لِغَيْرِ اللَّهِ . وَلَوْ ذَبَحَ لِلضَّيْفِ لَمْ تَحْرُمْ ذَبِيحَتُهُ لأَنَّهُ سُنَّةُ الْخَلِيلِ عَلَيْهِ السَّلَامُ، وَإِكْرَامُ الضَّيْفِ تَعْظِيمٌ لِشَرْعِ اللَّهِ تَعَالَى، وَمِثْلُ ذَلِكَ مَا لَوْ ذَبَحَ لِلْوَلِيمَةِ أَوْ لِلْبَيْعِ .

وَالْفَرْقُ بَيْنَ مَا يَحِلُّ وَمَا يَحْرُمُ: إِنْ قَصَدَ تَعْظِيمَ غَيْرِ اللَّهِ عِنْدَ الذَّبْحِ يَحْرُمُ، وَقَصْدُ الإِكْرَامِ وَنَحْوُهُ لا يَحْرُمُ [1] .

---

(1)- حاشيه ابن عابدين ١٩٦/٥.

همداسې نذر کول عبادت دی د غير الله لپاره نذر منل شرک دی .
د ګټې د جلب او دفع ضرر په نيت د زيارتونو ، پيرانو او صالحانو نذر منل شرک دی .
حکيم امت اشرف علي تهانوي په اصلاح الرسوم کې ددې خبرې توضيح داسې کړې ده :
ځنې عوام صالحانو او اولياوو ته د خپلو حاجتونو او مشکلاتو د لرې کولو په نيت نذورنه او فاتحې کوي چې دغه بزرګان زمونږ کارونه جوړوي او ددې کار په وجه به زمونږ په رزق کې پراخي راځي (نغوذ بالله ) .
خو هر مسلمان بايد په دې باندې پوه شي چې دغه ډول عقيده لرل سوچه شرک دی او ټول قرآنکريم د همداسې عقيدې پر بطلان باندې ډک دی .
ځنې بيا دا حيلې جوړوي چې حقيقي کار ساز خو الله دی خو مونږ دغه کار د توسل لپاره کوو او هغه ته دغه اولياء واسطه کوو .
د هغوی په ځواب کې بايد وويل شي چې د توسل معنی دا نه ده چې دغه وسائل د تکوين په کارخانه کې تخيل او متصرفين وګنل شي برابره خبره ده که هغه مستقيماً وي يا غير مستقيم ، يا دا عقيده لرل چې الله تعالی هغوی ته د څه ځارو واک ورکړی دی .
جاء في البحر رائق :
والنذر عبادة من العبادات، لا يجوز أن يصرف لغير الله تعالى، فمن نذر لمخلوق كأن يقول: لفلان علي نذر أن أصوم يوماً، أو لقبر فلان علي أن أتصدق بكذا، أو إن شفي مريضي أو جاء غائبي للشيخ فلان علي أن

أتصدق بكذا، أو لقبره علي أن أتصدق بكذا، فقد أجمع أهل العلم على أن نذره محرم وباطل، وعلى أن من فعل ذلك قد أشرك بالله تعالى الشرك الأكبر المخرج من الملة، لأنه صرف عبادة النذر لغير الله، ولأنه يعتقد أن الميت ينفع ويضر من دون الله، وهذا كله شرك[1] .

ژباړه: نذر د عباداتو څخه يو عبادت دی، رواه نه ده چې هغه د غير الله د پاره وشي، پس كه چا نذر وكړ د مخلوق لپاره داسې چې ووايي: د فلاني لخوا په ما نذر دی چې يو ورځ به روژه نيسم، او د فلاني قبر لپاره چې دا رنګه صدقه به كوم، او كچېرې زما مرض ښه شي او زما مسافر راشي نو زه به د فلاني شيخ يا پير لپاره دا رنګه صدقه كوم، او د قبر لپاره به دا رنګه صدقه كوم، پس په يقين سره اجماع د علماؤ ده چې دا ډول نذر حرام او باطل دی، او چا چې دغه كار وكړ هغه د الله تعالى سره شرك اكبر چې د ملت اسلام څخه د وتلو سبب دی اختيار كړ، ځكه هغه د نذر عبادت د غير الله لپاره كړی، او ځكه چې هغه عقيده لري چې مړی نفع رسوي او ضرر دفع كوي پرته له الله تعالى څخه، او دا ټول شرک دی .

همدارنګه ابن عابِدين وايي :

واعلم أن النذر الذي يقع للأموات من أكثر العوام وما يؤخذ من الدراهم والشموع والزيت ونحوها إلى ضرائح الأولياء الكرام تقرباً إليهم فهو بالإجماع باطل وحرام. قوله باطل وحرام لوجوه :منها أنه نذر لمخلوق، والنذر للمخلوق لا يجوز؛ لأنه عبادة، والعبادة لا تكون لمخلوق، ومنها أن

[1]- درالمحتار مع حاشيه ابن عابدين ١٩٦/٥-١٩٧، البحر رائق ٣٢٠/٢، مجموع الفتاوى ٢٨٦/١.

المنذور له ميت، والميت لا يملك، ومنها أنه ظن أن الميت يتصرف في الأمور دون الله تعالى، واعتقاده ذلك كفر [1].

ژباړه: او پوه شه چې د مړو لپاره نذر اکثره عوام تر سره کوي چې پيسې، شمع، غوړي او نور اخلي او هغه د اولياء کرامو د نږدې والی لپاره د هغوی په قبرونو ږدې دا په اجماع سره حرام او باطل عمل دی .

باطل او حرام په دې وجه دی چې دا نذر د مخلوق لپاره دی او د مخلوق لپاره نذر کول حرام دي، ځکه نذر عبادت دی او عبادت د مخلوق لپاره نه وي، دا چې مقصد يې مړی وي نو مړی هيڅ واک نلري (د نفعې او دفع ضرر هيڅ واک نلري) او که څوک په دې عقيده وي چې مړی د الله تعالی پرته متصرف دی نو دا عقيده لرل کفر دی.

لا حول ولا قوة الى بالله العلى العظيم

٧- دا خبره باطله ده چې د جناب رسو ل الله خلقت له نور څخه دی بلکي هغه يو بشر وو، لقوله سبحانه وتعالى : [قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ [2] ]

مګر که د نور څخه مطلب وحي او رسالت وي نو دا صحيح ده ، ځکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د بشريت لپاره هدايت او نور وو ، لقوله سبحانه وتعالى : [وَكَذَلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا مَا كُنتَ تَدْرِي مَا

---

([1])- حاشيه ابن عابدين ۴۳۹/۴.

[2] - سوره الکهف ۱۱.

الْكِتَابُ وَلاَ الإِيمَانُ وَلَكِن جَعَلْنَاهُ نُورًا نَّهْدِي بِهِ مَنْ نَّشَاء مِنْ عِبَادِنَا وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ] [(١)].

٨- همدارنګه د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم حاضر او ناظر ګڼل د بریلویانو عقیده ده چې باطله ده ، لقوله سبحانه وتعالى :

[قُل لاَّ يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ الْغَيْبَ إِلاَّ اللَّهُ ....] [(٢)].

ژباړه: (ووايه اى محمد ! دوى ته ) هر هغه څوك چې په اسمانونو او ځمكه كې دي په غيبو نه پوهېږي غير له الله نه.

٩- په سياست كې د اسلامي شريعت پر ځاى د سيكولار او نورو قوانينو ځاى پر ځاى كول لكه د شرعي حدودو پر ځاى د نورو وضعي سزاګانو مقررول بدعت او معاصر شرک دی ، لقوله سبحانه وتعالى : [ان الحكم الا لله ] .

همدارنګه په اسلام كې تند لارې او منځلارې عقيده د اسلام په ضد كفري توطيه ده .

هغه مسلمان چې د اسلام پوره پابند د منكَراتو او كفري اهدافو او قوانينو مخالف وي هغه ته تندلارى او هغه چې د كفري اهدافو او كفري قوانينو منلو ته نرم وي هغه ته منځلارى ويل خطرناكه كفري توطيه ده چې دې كار ته هغوى مډرن اسلام وايي . او په دې باندې مستقل كتابونه ليكل شوي دي پوره بيان دلته لازم نه بولم .

---

(١) - سوره الشورى ٥٢.

(٢) - سوره النمل ٦٥ ، كفايت المفتي ١٠٤/١

۱۰- د اولياء الله او صالحو کسانو په صفت کې غُلُو او افراط کول .

د صالحو کسانو په حق کې غلو، يعنې د حد څخه تېرېدل داسې چې د شرعی خلاف د هغه د حد څخه زيات صفت، پاکې او تقدس کول .

مونږ ته چې اسلامي شريعت د صالحو کسانو حد را ښودلی دا دی چې: د هغوی سره د الله تعالی پخاطر دوستي او محبت وساتو، د هغوی سره د الله تعالی پخاطر ملګري او په نيکو کارونو کې د يو د بل مدد وکړو .

ددې څخه علاوه د صالحو کسانو په حق کې غلو کولو څخه اسلامي شريعت منع کړي يو ځکه د پخوانيو امتونو د هلاکت يوه وجه دا وه چې د صالحو کسانو په باره کې يې غلو اختيار کړه .

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«إياكم والغلو، فإنما أهلك من كان قبلكم الغلو»[1].

ژباړه: پرهيز وکړئ تاسې له غلو، ځکه چې د تاسې نه مخکې چې وو هغوی د دغه غلو په وجه هلاک شوی وو .

ابن عباس ﷺ ددغه آيت شريف :[وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ ولَا تَذَرُنَّ وَدًّا ولَا سُوَاعًا ولَا يَغُوثَ وَيعُوقَ وَنَسْرًا * وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا][2]، په تفسير کې داسې وايي : ود، سواع، يغوث، يعوق او نسرا د نوح عليه السلام د قوم صالح کسان وو، چې هغوی د دغو کسانو په حق کې غلو وکړه د شيطان د

---

([1])- رواه مسند أحمد والترمذي

([2])– سوره نوح: ۲۳، ۲۴.

وسواسو په وجه يې د هغوی د مجسمو او قبرونو لمانځنه او عبادت کولو[1] .

نو ځکه جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل امت ته وصيت کړی دی چې زما قبر د عبادت ځای مه ګرځوئ او الله تعالى ته يې داسې دعا کړې ده :

«اللَّهمَّ لا تجعل قبري وثنًا يُعبد»

ژباړه: ای الله ! زما قبر بت او د عبادت کولو ځای مه ګرځوه.

او ددې عمل په وعيد کې فرمايي: «اشتد غضب الله على قوم اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد».

يعنې: سخت شوی عذاب د الله تعالى په هغه قوم باندې چې د انبياؤ قبرونه يې مسجد ګرځولی دی .

۱۱- دا عقيده لرل چې اولياء الله يوازې په تصوف واله پورې اړه لري او بس او بيا د اولياء لپاره د غوث ، ابدال او نورو درجې ورکول د قرآن او سنتو خلاف خيال او باور دی .

ټول مسلمانان اولياء الله ( د الله تعالى دوستان دي) او د اولياء الله درجه په تقوی پورې اړه لري .

الله سبحانه وتعالى فرمايي:[ أَلا إِنَّ أَوْلِيَاء اللّهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ ][2] .

---

([1])- صحيح البخاري .

[2]- سوره يونس :۶۲ .

ژباړه: اګاه شئ! یقیناً د الله دوستان چې دي؛ پر هغوی باندې نه څه وېره شته او نه دوی غمژن کېږي.

دا کوم کسان دي او ددې کسانو صفت څه دی؟ قرآنکریم یې خپله تعریفوي:

[الَّذِينَ آمَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ].

ژباړه: هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او ځان (له نافرمانیو) ساتي ، تقوی یې اختیار کړي وي.

جاء في شرح عقيده الطحاويه :

«وَالْمُؤْمِنُون ِ كَلُّهُمْ أَوْلِيَاءُ الرَّحْمَنِ، وَأَكْرَمُهُمْ عَنْدَ اللهِ أَطْوَعُهُمْ وَأَتْبَعُهُمْ لِلْقُرْآنِ»

أَطْوَعُهُمْ: يعني أكثرهم طاعة.

وَأَتْبَعُهُمْ لِلْقُرْآنِ: يعني أكثرهم اتّباعًا للقرآن.

ولابدَّ أن نعلق على موضوع الأولياء؛ لأنَّ بعض المتصوفة وغيرهم يعتقدون في الأولياء الذين يخصصونهم بالأضرحة والقباب [(١)].

یعني : مؤمنان ټول د الله دوستان دي او د الله تعالی په نزد باندې د دوی اکرام ، منزلت او نږدیوالی په اطاعت او په قران باندې عمل کولو پورې اړه لري چې کوم یو زیات متقي دی .

١٢- کوډګرو ته ورتلل او د هغوی په خبرو باور کول :

---

[١] - شرح عقيدة الطحاويه لدوكتور فهد .

**د سحر او کوډو علاج:**

د کډو او سحر علاج په ساحر او کوډګر باندې حرام دی ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه چې د سحر علاج په سحر باندې جایز دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ور ته وفرمایل:«هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ »[1].

یعنې: دا د شیطان عمل دی ( داسې کول جایز نه دي).

بلکې د سحر علاج به په قرآنکریم او شرعي اذکارو سره کیږي.

علماء کرامو د قرانکریم لاندې آیتونه ښودلې دي چې هغه به په مریض باندې دم او یا په اوبو باندې دم کړ شي او هغه اوبه به مریض ته ورځښل کیږي.

- ✓ د فاتحه د سورت لوستل.
- ✓ آية الكرسي.
- ✓ د اعراف د سورة له (۱۰۶) ایت څخه تر (۱۲۲) آیت پورې .
- ✓ د یونس سورت له (۷۹) آیت څخه تر (۸۲) آیت پورې .
- ✓ د طه سورت له (۶۵) آیت څخه تر (۶۹) آیت پورې .
- ✓ سوره اخلاص او معوذتین درې ځله لوستل.

[1]- رواه ابوداود ۳۸۶۸ .

- ✓ خپله مريض يې هم پر خپل ځان دم کولای شي ، او که يو صالح عالم ته ورشي ډېر به ښه وي ، لکن ددې آيتونو په تلاوت کې اخلاص او يقين ضرور دی.

**د سحر او جادو څو علائم او نښې دا دي :**

- ✓ کور د ننوتلو په وخت کې سخت په تنګتوب.
- ✓ بغير له کوم سبب څخه ژړا او يا خندا.
- ✓ د ذکر او عبادت څخه کرکه کول.
- ✓ د کوم مرض پرته قولنج او د خېټي هميشنۍ درد.
- ✓ بغير له کوم سبب څخه د مېړه يا د ښځې څخه شديده کرکه کول.
- ✓ د سحر له آيتونو څخه متأثير کيدل.

**د ساحر او جادوګر علائم دا دي:**

- ✓ ساحر اوکاهن د مريض او د مريض د مور د نوم پوښتنه کوي.
- ✓ د مريض څخه ځنې نښې نښانې غواړي لکه خولۍ ،رومنځ او داسې نور.
- ✓ د يو حيوان په خاصو صفاتو ذبحه کول غواړي او د حيوان د ځنو برخو ګډول له وينې سره.
- ✓ په بې مفهومه خبرو او نيمګړيو تورو به خبرې کوي.

✓ یو شی به مریض ته ورکوي چه په ځمکه کې یې خښ یا یې د کور په کوم ځای کې پټ کړي.

✓ د خاصو وسایلو په وسیله د مریض له احوالو ځان خبرول.

✓ د فسق علایم ،په نومړي کس کې به د فسق علایم څرګند معلومیږی تقوی به له سره نلري یو فاسق انسان به وي.

**فال او طالع کتل څه حکم لري ؟**

**لومړی** : د نجوم علم په دوه ډوله دی جایز او حرام

**اول حسابي :** د علم نجوم هغه علم دی چې د علم او وسائل په وسیله د میاشتو حساب او نور وربانديې څرګندیږي چې دغه علم ته فقهاؤ اجازت ورکړی دی.

**دوهم استدلالي :** کوم چې ددې علم څښتنان په غیب باندې د پوهېدو دعوی کوي او په دې عقیده دي چې حوادث لره په خپل ذات کې تأثیر دی ، دا علم حرام دی او د سحر یوه برخه ده.

جاء في موسوعة الفقهية و حاشيه ابن عابدين:

الأَوَّلُ : حِسَابِيٌّ : وَهُوَ تَحْدِيدُ أَوَائِلِ الشُّهُورِ بِحِسَابِ سَيْرِ النُّجُومِ.

وَجَاءَ فِي حَاشِيَةِ ابن عابدين :وَالْحِسَابِيُّ حَقٌّ ، وَقَدْ نَطَقَ بِهِ الْكِتَابُ فِي قَوْلِ الْحَقِّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى : [ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ]. وَأَجَازَ الْفُقَهَاءُ الاعْتِمَادَ عَلَيْهِ فِي دُخُولِ أَوْقَاتِ الصَّلاةِ وَتَحْدِيدِ.

الثَّانِي : اسْتِدْلالِيٌّ: وَقَدْ عَرَّفَ ابْنُ عَابِدِينَ هَذَا الْقِسْمَ بِأَنَّهُ عِلْمٌ يُعْرَفُ بِهِ الاسْتِدْلالُ بِالتَّشَكُّلاتِ الْفَلَكِيَّةِ عَلَى الْحَوَادِثِ السُّفْلِيَّةِ . وَهَذَا الْقِسْمُ هُوَ

الْمَنْهِيُّ عَنْهُ إِذَا ادَّعَى أَصْحَابُهُ أَنَّهُمْ يَعْلَمُونَ الْغَيْبَ بِأَنْفُسِهِمْ مِنْهُ ، أَوْ أَنَّ لَهَا تَأْثِيرًا عَلَى الْحَوَادِثِ بِذَاتِهَا ؛ لِخَبَرِ : " مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ زَادَ مَا زَادَ [1] .

**دوهم:**

فال يا طالع كتل چې د هرې لارې وي ، د لاسونو د ورغوو كتل ، فلكي حساب او نور له لارې او د انسان د سعادت ، شقاوت ، خوش قمست او نورو باندې د غيبو پوهيدو ادعا كول حرام دي او دا د كفر عقيده ده.

د بخت يا قمست او طالع معلومولو د پاره كاهن او ساحر ته ورتگ حرام دى:

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: « مَن أتَي عَرَّافاً فَسَألَهُ عَن شَئٍ فَصَدَّقَهُ لمَ تُقبَل لَهُ صَلاةٌ أربَعِينَ يَوماً» [2]

ژباړه: څوک چه عرافې (هغه كس چې په غيبو باندې د پوهېدلو دعوى لري) ته ورشي او د يوه شى په اړه له هغه څخه پوښتنه وكړي او هغه رښتيا وبولي د څلويښتو ورځو لمونځ يې نه قبليږي.

همدارنگه فرمايي : «مَن أتَي كاهِناً فَصَدَّقَهَ بمَا يَقُولُ فَقَد كفَر بمَا أنزلَ عَلَي مُحَمَّدٍ صَلَّي الله عَلَيهِ وَ سَلَّم» [3] .

ژباړه: هر څوک چه فالگير (هغه كس چه دعلم غيب دعوا كوي) ته ورشي او د هغه خبرې رښتيا وگڼي دا كس په هغه څه كافر شو كوم چه

[1] - موسوعة الفقهية ۵۴/۱۴ ، حاشيه ابن عابدين ۳۰/۱ .

[2] - رواه مسلم .

[3] - رواه احمد ۶۸/۴ ، سنن الترمذي ۲۴۲/۱ ، ابن ماجه ۴۰۴/۱ .

په محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوي .

خلاصه دا چې کوډګرو او طالع کتلو واله ته ورتلل حرام .

## عبادتي بدعات

## اول - په طهارت کې بدعتونه

۱- د هر اوداسه سره استنجاء کول :

ځنې کسان دا عادت لري چې د قضای حاجت پرته هر ځل له اوداسه سره استنجاء هم کوي حال دا چې د باد په وتلو او یا خوب سره استنجاء ته ضرورت نشته بلکي استنجاء د قضای حاجت وروسته د نجاست پاکول دي، استجاء کول هغه وخت ضرور دي چې کله سړی قضاء حاجت ته لاړ شي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : «من استنجی من ريح فليس منا» (۱)

ژباړه : چا چې د باد وتلو له امله استنجاء وکړه له ما څخه نه دی .

جاء في فقه الاسلامي وادلته :وليس على من نام أو خرجت منه ريح استنجاء باتفاق العلماء، لقوله صلّى الله عليه وسلم : «من استنجى من ريح فليس منا» (۲)

د باد د پريکيدلو په صورت کې استنجاء پدې وجه نشته چې پدې صورت کې بدن په پلتۍ (نجاست ) نه وي لړل شوی د باد وتل صرف حکمی ( چې

(۱) - رواه الطبراني في معجم الصغير

(۲) - فقه الاسلامي و ادلته – حکم استنجاء

په ستركو نه ليدل كيږي ) نجاست دى چې پدى صورت كې
صرف اودس كافى دى [(١)] .

وفي الموسوعة الفقهية :لاَ اسْتِنْجَاءَ مِنَ الرِّيحِ، صَرَّحَ بِذَلِكَ فُقَهَاءُ الْمَذَاهِبِ الأْرْبَعَةِ، فَقَال الْحَنَفِيَّةُ: هُوَ بِدْعَةٌ، وَهَذَا يَقْتَضِي أَنَّهُ عِنْدَهُمْ مُحَرَّمٌ، وَمِثْلُهُ مَا قَالَهُ الْقَلْيُوبِيُّ مِنَ الشَّافِعِيَّةِ، بَل يَحْرُمُ، لأِنَّهُ عِبَادَةٌ فَاسِدَةٌ، وَيُكْرَهُ عِنْدَ الْمَالِكِيَّةِ وَالشَّافِعِيَّةِ، قَال الدُّسُوقِيُّ :لِقَوْل النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ مِنَّا مَنِ اسْتَنْجَى مِنْ رِيحٍ .

و جاء في درالمختار : وقيل سببها الحدث الحكمية وهو وصف شرعى يحل فى الاعضاء يزيل الطهاره [(٢)] .

و جاء في بدائع الصنائع ٨٣/١ ، تبين الحقائق (٣٧٢/١) ، مراقي الفلاح (ص ١٨) : لا استنجاء في الريح ، و الاسنتجاء من الريح بدع .

٢- په استجاء كې بې ځايه مبالغه كول:

مسونه طريقه دا ده چې لومړى به شرمګاه په تاقو لوټو يا قاغذ تشناب سره پاک کړ شي د مخې طرف به په چپ لاس سره پوره خالي او وچ کړي تر څو د ميتيازو څاڅکې پوره وچ شي د هغه وروسته به خپل شرمګاه په اوبه وونځي (استجاء به ووهي) .

---

(١) - فتاوى دار العلوم ديوبند ١ / ٨٦

(٢) - درالمختار على هامش رد المختار ١ / ١٣٦

مګر ځني کسان په تشناب کې زيات وخت تيروي په ولاړه ګرځي او را ګرځي او پښو ته حرکات ورکوي ، يو پښه پر بله اړوي تر څو يې څاڅکې وچ شي حال دا چې څاڅکي په ناستي سره وچيږي نه په ګرځيدلو او دا کار څه شرعي اصل نلري .

قال الفتاوى اللجنة الدائمة : ومن البدع التي تسبب الحرج والمشقة في الدين : ما يفعله بعض الموسوسين من طول المكث في الخلاء ، والمشي والقيام بحركات ، كأن يرفع قدما ويحَطَّ أخرى زاعما أنه بهذا يستنقي ، والواقع أنه كلما زاد في هذا نزل البول ؛ لأن الماء يستقر في المثانة ، فإذا تهيأ الإنسان للبول خرج ما اجتمع ، فإذا مشى وتنحنح أو تَزَحَرَ وتوقف رشح شيء آخر . فالرشح لا ينقطع [1] .

٣- د چټ مسحه کول بدعت دى :

په اوداسه کې د چټ مسحه کول او همدارنګه د څنګلو مسحه کول بدعت دى مګر د لاسونو په چټونو باندې د غاړي مسحه کولو په باره کې اختلاف نظر دى ځني وايي مستحب او ځني وايي بدعت دى .

بحر الرائق وايي:( قَوْلُهُ : وَمَسَحَ رَقَبَتَهُ ) يَعْنِي بِظَهْرِ الْيَدَيْنِ, وَقَدْ اُخْتُلِفَ فِيهِ فَقِيلَ بِدْعَةٌ وَقِيلَ سُنَّةٌ , وَهُوَ قَوْلُ الْفَقِيهِ أَبِي جَعْفَرٍ وَبِهِ أَخَذَ كَثِيرٌ مِنْ الْعُلَمَاءِ كَذَا فِي شَرْحِ مِسْكِينٍ , وَفِي الْخُلاصَةِ الصَّحِيحُ أَنَّهُ أَدَبٌ , وَهُوَ بِمَعْنَى الْمُسْتَحَبِّ كَمَا قَدَّمْنَاهُ , وَأَمَّا مَسْحُ الْحُلْقُومِ فَبِدْعَةٌ [2] .

---

[1] - مجلة البحوث الاسلامية ١٤ / ٢٠٠

[2] - البحر الرائق شرح كنز الدقائق ١/ ٢٩

هغه ډله فقهاء کرام چې د غاړې مسحه کول مستحب ګڼي په دغه حديث باندې استلال کوي : عن ليث عن طلحة بن مُصرِّف عن أبيه عن جده أنه رأى رسول الله صلّى الله عليه وسلم يمسح رأسه حتى بلغ القَذَال، وما يليه من مُقَدَّم العنق (رواه احمد باسناد ضعيف).

مګر جمهور فقهاء وايي د غاړې مسحه کول مستحب نه بلکي مکروه دي .

فقه الاسلامي وادلته وايي: «وقال جمهور الفقهاء: لا يندب مسح الرَقَبَة، بل يكره؛ لأنه من الغُلُو في الدين»[1]

جمهور فقهاء وايي د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه چې د اوداسه کومه طريقه په صحيحو احاديثو کې روايت شوې په هغه کې د غاړې مسحه کول نه دي راغلي ، او پورته حديث ضعيف دی.

و الله سبحانه وتعالی اعلم

۴- د اوداسه پر مهال مسنونه اذکار :

د اوداسه په پيل کې «بسم الله » ويل سنت دي او د اوداسه په پای کې لاندې اذکار ويل مستحب دي چې زيات فضيلت لري :

حضرت عمر بن الخطاب ﵁ روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : د تاسې څخه چې څوک اودس وکړي او د پوره آدابو سره په ښه شان اودس وکړي بيا د اوس کولو وروسته ووايي :

[أشهد ان لا اله الا الله و أشهد ان محمد عبده و رسوله] نو د ده د پاره به د جنت ټولې دروازې خلاصې شي هغه چې په کومه دروازه جنت ته

[1] - فقه الاسلامي و ادلته – آداب الوضوء

تلل غواړي جنت تلای شي [۱].

او د هغه وروسته به دا دعا وايي :« اَللهُمَّ اجْعَلْنِیْ مِنَ الْتَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنَ الْمُتَطَہِّرِیْنَ» [۲]

مګر دا چې د اوداسه د اندامونو په مهال کوم کوم اذکار وويل شي د فقهاؤ تر مينځ اختلاف دی ځنې وايي مستحب او ځنې وايي د پورته اذکارو څخه پرته نور اذکار هيڅ اصل نه لري، په موسوعة الفقهيه کې په دې اړه تفصيلي بيان راغلی او وايي د ځنو فقهاوو په نزد مستحب ، مګر امام نووي رحمه الله او ابن قيم رحمه الله وايي چې د اوداسه په سر کې «بسم الله» او په پای کې کلمه تشهد او دعا ويلو پرته نور اذکار هيڅ اصل نلري [۳].

[۱] - رواه مسلم .

[۲] - رواه الترمذي

[۳] - جاء في موسوعة الفقهية ۳۷۵/۴۳ : اخْتَلَفَ الْفُقَهَاءُ فِي الدُّعَاءِ عِنْدَ غَسْلِ أَوْ مَسْحِ الأَعْضَاءِ فِي الْوُضُوءِ .

فَذَهَبَ الْحَنَفِيَّةُ وَالْمَالِكِيَّةُ وَأَكْثَرُ الشَّافِعِيَّةِ وَجَمَاعَةٌ مِنَ الْحَنَابِلَةِ إِلَى أَنَّهُ يُسْتَحَبُّ قَوْلُ الدُّعَاءِ عِنْدَ كُلِّ عُضْوٍ . وَصَرَّحَ الْمَالِكِيَّةُ بِأَنَّهُ يُسْتَحَبُّ ذِكْرُ اللَّهِ عِنْدَ غَسْلِ كُلِّ عُضْوٍ مِنْ أَعْضَاءِ الْوُضُوءِ . وَدُعَاءُ الأَعْضَاءِ عِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ وَالشَّافِعِيَّةِ وَالأَقْفَهْسِيُّ مِنَ الْمَالِكِيَّةِ هُوَ أَنْ يَقُولَ بَعْدَ التَّسْمِيَةِ عِنْدَ الْمَضْمَضَةِ : اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى تِلاوَةِ الْقُرْآنِ الْكَرِيمِ وَذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ .ضَعْفِهِ ، وَأَنْ يَدْخُلَ تَحْتَ أَصْلٍ عَامٍّ ، وَأَنْ لا يُعْتَقَدَ سُنِّيَّةُ ذَلِكَ الْحَدِيثِ .

وَذَهَبَ الشَّافِعِيَّةُ فِي رَأْيٍ وَالْحَنَابِلَةُ عَلَى الأَصَحِّ : إِلَى أَنَّهُ لا يُسْتَحَبُّ الدُّعَاءُ عِنْدَ كُلِّ عُضْوٍ . وَنَصَّ الْحَنَابِلَةُ عَلَى كَرَاهَتِهِ ، وَالْمُرَادُ تَرْكُ الأَوْلَى .

۵- په جامه یا بدن باندې د نجاست پرېوتلو له کبله اودس کول شرعي اصل نلري بلکې یوازې د نجاست مینځل پکار دي .

## دوهم - د جومات بدعتونه

۱- په یو محله کې ډېر جوماتونه لکه : په اوس عصر کې په یوه کلي کې څو جوماتونه چې د مسلمانانو د اختلافاتو ، تفرقې سبب جوړیږي ، د مسلمانانو رونق ته زیان رسوي او د ضرورت پرته د مال مصرفول دي[1]

۲- د تحیة المسجد ترک کول:

جومات ته داخلیدل او په ذکر مشغولیدل دا چې د کیناستلو څخه مخکې دوه رکعته «تحیه مسجد» کول مستحب دي ، په اوس عصر کې ډېر مسلمانان یا خو له تحیة المسجد سره نا آشنا دي او یا ورڅخه غافله دي عام خلک خو پرېږده حتی د مساجدو اکثرو امامانو هم دا سنت ترک کړي دي ، سنت او مستحب ده چې سړی کله جومات ته

قَالَ النَّوَوِيُّ : دُعَاءُ الأَعْضَاءِ لا أَصْلَ لَهُ . وَقَالَ ابْنُ الْقَيِّمِ : الأَذْكَارُ الَّتِي يَقُولُهَا الْعَامَّةُ عَلَى الْوُضُوءِ عِنْدَ كُلِّ عُضْوٍ لا أَصْلَ لَهَا عَنْهُ عَلَيْهِ أَفْضَلُ الصَّلاةِ وَالسَّلامِ

[1] - قال السيوطي في (الأمر بالاتباع و النهى عن الابتداع) ومن تلك المحدثات كثرة المساجد في الملحة الواحدة و ذلك لما فيه من تفريق الجمع وتشتيت شمل المصلين و حل عروة الانضمام في العبادة و ذهاب رونق وفرة المتعبدين و تعديد الكلمة و اختلاف المشارب ومضارة حكمة مشروعية الجماعات أغني اتحاد الأصوات على اداء العبادات و عودهم على بعضهم بالمنافع و المعونات و المضارة بالمسجد القديم أو شبه المضارة أو محبة الشهرة السمعة و صرف الأموال لا ضرورة .

داخل شي د کيناستلو مخکې به دوه رکعته تحية المسجد نفل لمونځ وکړي مګر په لاندې صورتونو کې به يې ترک کوي. [(۱)]

الف : کله چې جماعت ته کم وخت پاتې وي .

ب : دا چې د کراهيت وخت وي .

۳- کله چې په جومات کې د علم شرعي د زده کړې علمي دوره وي نو په داسې حالت کې په نفلو باندې مشغولتيا . [(۲)]

۴- جومات ته د وړوکو ماشومانو راوستل کوم چې په پاکی نه پوهيږي او د خلکو د لمانځه د خلل سبب جوړيږي مکروه دي .

۵- په جومات کې خرڅول او اخيستل (بيع او تجارت ) او يا د هغه لپاره اعلانات کول [(۳)].

۶- په جومات کې د ورک شوي شي اعلان کول ، کچېرې د جومات څخه د باندې وي باک نلري .

لقوله نبى صلى الله عليه وسلم : « مَنْ سَمِعَ رَجُلًا يَنْشُدُ ضَالَّةً فِي الْمَسْجِدِ فَلْيَقُلْ : لَا رَدَّهَا اللَّهُ عَلَيْكَ ؛ فَإِنَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهَذَا » [(٤)]

۷- په جومات کې د نبوي زيارت تصوير يا نور تصويرونه ځوړل :

په دې اړه له علماء البلد حرام څخه پوښتنه شوي چې : په جومات کې د رسول الله د زيارت تصوير ځړول څه حکم لري دلته په کلمبيا کې په

---

(۱) - اصلاح المساجد ، ص ۹۷ .

(۲) - اصلاح المساجد ، ص ۹۷ .

(۳) - اصلاح المساجد ص ۱۸۵ .

(٤) – رواه مسلم ٥٦٨ .

جومات کې د جومات ښی لور ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زیارت عکس ځوړند دی په دې اړه شرعی حکم څه دی ؟

ځواب : په جومات کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زیارت تصویر ځوړول بدعت دی ځکه چې دا عمل نه د صحابوو او نه هم د تابعینو او نه د نورو خیرالقرون په دور کې چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم بې حده محبت لرلو نه دی ثابت شوی [1].

۸- په جومات کې د اذکارو ، دعا او بل څه لیکل :

د ضروریاتو نه علاوه په جومات کې نقشونه جوړول ، لیکنې کول او داسې نور مکروه دي او د جوماتونو زیات زینت او نقش نګار د قیامت له علامو څخه دي د انس ﷺ نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«**لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ**» [2].

یعنې : قیامت به تر هغه پورې قایم نشي څو پورې چې خلک په جوماتونو کې یو له بله د زینت او ښایست فخر کوي.

او موسوعة الفقهیه کې لیکي : چې په جومات کې سینګار ، نقش او لیکنې د جمهورو فقهاوو په نزد مکروه دي ، د سنتو خلاف کار دی. [3].

---

[1] - فتاوی علماء بلدالحرام ۱/۳۰۲-۳۰۴ .

[2] - رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه .

[3] - جاء في موسوعة الفقهية ۲۱۷/۲۳ : ذهب جمهور الفقهاء إلى أنه يكره زخرفة المسجد بذهب أو فضة ، أو نقش ، أو صبغ ، أو كتابة ، أو غير ذلك مما يلهي المصلي عن صلاته ؛ لأن النبي ﷺ نهى عن ذلك ، فعن ابن عباس ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ : ( ما أمرت بتشييد المساجد ) والتشييد : الطلاء بالشِّيد ، أي : الجص ، قال ابن عباس : " لتزخرفنها كما زخرفت اليهود والنصارى " ، وعن أنس ﷺ أن النبي ﷺ قال : ( لا تقوم الساعة حتى يتباهى الناس في المساجد ) – رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه ، وصححه الألباني – ، وروى

۹- په جوماتونو کې د دینوي خبرو خطر :

ځنې کسان په جومات کې په اوچت آواز خبرې او مجلسونه کوي خپله هم د جومات بې ادبي او ګناه کوي او هغو خلکو ته چې په تلاوت ، ذکر او عبادت مشغول وي مزاهمت کوي.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلاَ تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا] [(١)].

ژباړه : او رښتيا چې جوماتونه د الله پاک دي نو له الله پاک سره بل هيڅ څوک مه بولئ.

یعنې جومات یوازې د عبادت ځای دی د بې ګټې دنيوي خبرو ، تربګنت او نورو ځای نه دی.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايې: «سيكون في آخرِ الزمانِ قومٌ يجلسونَ في المساجدِ حلقًا حلقًا ، أمامهُم الدنيا فلا تجالسُوهم ، فإنه ليسَ للهِ فيهم حاجةٌ » [(٢)]

او په يو بل روايت کې داسې راغلي : «يأتي على الناس زمان يتحلقون في مساجدهم وليس همتهم إلا الدنيا ، ليس لله فيهم حاجة فلا تجالسوهم» [(٣)].

---

البخاري في صحيحه أن عمر ﷺ أمر ببناء مسجد وقال : " أكنَّ الناس من المطر ، وإياك أن تُحمّر أو تصفّر فتفتن الناس " ، وقال أبو الدرداء ﷺ : " إذا حلَّيتم مصاحفكم وزخرفتم مساجدكم فالدمار عليكم " ؛ ولأن ذلك يلهي المصلي عن الصلاة بالنظر إليه فيخل بخشوعه ، ولأن هذا من أشراط الساعة

(١) - سوره الجن :١٧ .

(٢) - شعب الايمان ، دارقطني ، سلسلة الصحيحة ١١٦٣.

(٣) - صحيح الحاكم ٣٥٩/٤ و صححه الذهبي في تخليص.

ژباړه: په اخیره زمانه کې به داسې خلک پیدا شي چې جومات ته به راځي ،هلته به ډلې ډلې کښیني او دنیاوي خبرې به کوي تاسې له داسې خلکو سره مه کښینئ ،ځکه چې الله تعالی ته په جومات کې د داسې خلکو ضرورت نشته.

۱۰- په جومات کې د مړي دفن کول بدعت دی.

۱۱- په اوس عصر کې د ښځو تلل جومات ته منع دي :

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حیات مبارک کې ښځې د جماعت لپاره جومات ته تللي مګر د خلفاء راشدینو په دور کې د فتنې له وجې منع شوې ، په هر صورت د ښځې د پاره نظر جومات ته په کور کې لمونځ کول غوره دي ، د ښځې د پاره بهترین جومات خپل کور دی.

په حدیث شریف راغلي : لا تمنعوا نساءكم المساجد، وبيوتهن خير لهن[1].

ژباړه : تاسې خپلې ښځې له جومات څخه مه منع کوئ ، مګر د دوی کورونه (د لمانځه د ادا کولو د پاره ) غوره دي (زیات ثواب لري نسبت جومات ته ).

د امام ابوحنیفه او صاحبین په نزد د ځوانو ښځو تلل جومات ته مطلق مکروه دي ځکه چې په دې کې د فتنې وېره ده ، امام ابوحنیفه رحمه الله وايي : د زړو ښځو لپاره سهار ، ماښام او ماسختن جومات ته تلل باک نلري ځکه د سهار پر مهال فاسقان خلک ویده وي او د ماښام او

[1] - رواه أبو داود و ابن خزيمة.

ماسختن په وخت مشغول وي د فتنه وېره دومره نه وي مګر صاحبان (ابو يوسف او محمد ) وايي د زړو ښځو حضور په ټولو لمونځونو کې باک نلري ځکه فتنه نشته.

مګر د متأخرينو فقهاؤ مفتى به قول دا دى چې: په اوس عصر کې چې د فتنې عصر دى په مطلق ډول د ښځو تلل جومات ته منع دي که څه هم زړې ښځې وي ځکه چې اوس عصر کې فاسقان ډېر دي.

جاء في فقه الاسلامي وادلته:

قال أبو حنيفة وصاحباه : يكره للنساء الشوابّ حضور الجماعة مطلقاً، لما فيه من خوف الفتنة، وقال أبو حنيفة: ولا بأس بأن تخرج العجوز في الفجر والمغرب والعشاء؛ لأن فرط الشبق حامل (باعث (فتقع الفتنة، وفي غير هذه الأوقات الفساق نائمون في الفجر والعشاء، ومشغولون بالطعام في المغرب، وأجاز الصاحبان لها أن تخرج في الصلوات كلها؛ لأنه لا فتنة، لقلة الرغبة فيهن.

والمذهب المفتى به لدى المتأخرين: أنه يكره للنساء حضور الجماعة ولو لجمعة وعيد ووعظ، مطلقاً، ولو عجوزاً ليلاً، لفساد الزمان، وظهور الفسق.[١]

ژباړه : ابوحنيفه او صاحبان يې رحمهم الله وايي : د ځوانو ښځو لپاره جومات ته تلل مطلق مکروه دي ، ځکه چې په دې کې د فتنې وېره ده ، ابوحنيفه وايي : د زړو ښځو لپاره په سهار ، ماښام او ماسختن کې تلل

[١] - فقه الاسلامي وادلته ، فتح القدير:١/٥٢٩، الدر المختار وحاشية ابن عابدين: ١/٥٢٩

باک نلري ځکه د سهار په وخت کې فاسقان بیده وي ، د ماښام په وخت کې مشغول او د ماسختن په وخت کې په خوراک مشغول وي ، مګر صاحبان زړو ښځو ته په ټولو وختونو کې اجازت ورکړی دی ځکه زړو ښځو ته د فتنې رسیدو ویره نشته . مګر د متأخرینو مفتی به قول دا دی چې د ښځو لپاره (که ځواني وي یا زړې ) شپه وي یا ورځ او حتی د جُمعې او عید لمونځونو او وعظ لپاره جومات ته تلل مطلق مکروه دي ځکه چې اوس فتنې زیاتې دي .

**١٢- د ليلة قدر يا د برائت شپې رڼه کولو لپاره په جومات کې اجتماع:**

د لیلة القدر لپاره په جومات کې را ټولیدل ، اجتماع جوړل او نعت خواني ، ذکر او یا د لاوسپکرونو ځالانول هیڅ اصل نلري ځکه دغه کار نه د رسالت په زمانه شوی او نه هم په خیر القرون کې ددې څه اصل نه شته.

جاء في الدرمختار:

ويحصل القيام بالصلاة نفلا فرادى من غير عدد مخصوص وبقراءة القرآن والأحاديث وسماعها وبالتسبيح والثناء والصلاة والسلام على النبي صلى الله عليه وسلم. ويكره الاجتماع على إحياء ليلة من هذه الليالي في المساجد وتمامه في شرحه وصرح بكراهة ذلك في الحاوي القدسي ،قال وما روي من الصلوات في هذه الأوقات يصلي فرادى غير التراويح[١] .

---

[١] - الدرمختار ، و حاشيه ابن عابدين ٢/٢٥.

ژباړه : د (ليلة القدر) رڼه كولو كې يوازې نفلي لمونځ د ركعتونو د شمير پرته اداكولو ، د قرآن تلاوت ، د احاديثو لوستل يا غوږ ورته نيولو ، تسبيح او درود ويلو سره رڼا كيږي مګر د ليلة قدر لپاره په جومات كې د اجتماع جوړول مكروه دي.

و جاء في الفتاوي اللجنة الدائمة:

لا يجوز الاحتفال بمناسبة ليلة القدر ولا غيرها من الليالي ولا الاحتفال لإحياء المناسبات ؛ كليلة النصف من شعبان ، وليلة المعراج ، ويوم المولد النبوي ؛ لأن هذا من البدع المحدثة التي لم ترد عن النبي ﷺ ولا عن أصحابه ، وقد قال ﷺ : من عمل عملا ليس عليه أمرنا فهو رد[1] .

ژباړه: د ليلة قدر او نورو شپو لمانځل جايز نه دي لكه : د شعبان د پنځلمسې شپه ، معراج شپه ، د مولود شريف ورځ ځكه چې دا نوي پيدا شوي بدعات دي چې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه او نه هم صحابه كرامو څخه ثابت شوي دي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : هر څوک چه داسې عمل تر سره كړي چه زمونږ له (دين ) څخه نه وي مردود دى.

[1] - اللجنة الدائمة ٢٥٧/٢

## دريم - د قرآنكريم په تلاوت کې بدعات [1]

۱- قرآنكريم د سندرو پشان لوستل مكر ددې حديث شريف څخه « لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ » مقصد په قرآنكريم کې تدبر او د تجويد د احكامو عملي كول دي .

۲- په اجتماعي يا ډله ييز ډول په يوه آواز سره د قرآنكريم تلاوت كول ، د قرآن تلاوت عبادت دی د هغه په ډله ييز توګه تلاوت منع دی لقوله نبی صلى الله عليه وسلم : « لا يجهر بعضكم على بعض في القراءة »

۳- د قرانكريم آيتونه د جومات په دروازو ، محراب او ديوالونو باندې ليكل ځكه چې دا كار د قرآن بې احترامي ده او قرآن د سينګار لپاره نه دی او په جومات کې د قرآني آيتونو او اذكارو ليكل په اتفاق د فقهاوو مكروه دي .

قال ابن الهمام رحمه الله في فتح القدير: تكره كتابة القرآن وأسماء الله تعالى على الدراهم والمحاريب والجدران وما يفرش" انتهى[2].

وقال النووي رحمه الله في روضة الطالبين : ويكره كتابته على الحيطان، سواء المسجد وغيره، وعلى الثياب [3]

۴- د قرآنكريم د تلاوت لپاره د قاري اجاره كول حرام دي ځكه د قرآنكريم تلاوت عبادت دی او په عبادت باندې د اجرت اخيستل جواز نه لري

[1] - المُتلقي اهل التفسير / هيئت مفسرين العالمي .

[2]- فتح القدير ١٦٩/١ .

[3]- ضروضة الطالبين ٨٠/١ .

مګر د قرآنکريم تعليم ددې څخه مستثنی دی .
قال علامه ابن عابدِين:  أن عامة كتب المذهب من متون و شروع و فتاوى ، كلها متفقه على أن الاستئجار على الطاعات لا يصح عندنا ، استثنى المتأخرون تعليم القرآن[١] .
وقال في "الهداية": الأصل أن كل طاعة يختص بها المسلم، لا يجوز الاستئجار عليها عندنا لقوله -عليه السلام ) : -اقرؤوا القرآن ولا تأكلوا به ).
۵- د عادت او احترام له مخکې د قرآنکريم مچي کول باک نلري مګر د ثواب په نيت داسې کول صحي نه دي ځکه چې دا د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه کرامو څخه نه دي ثابت شوي .
۶- په فرضي لمانځه کې د قرآنکريم ختم چې دا کار له سنتو څخه نه دی ثابت شوی .
۷- صرف د قرآن ژباړه يا ترجمه خپرول:
د قرآنکريم د عربي څخه پرته په نورو ژبو باندې يوازې د ژباړې خپرول او ليکل جواز نلري او هم د عربې څخه بغير د قرآن يوازې ژباړې تلاوت د قرآنکريم د تلاوت ثواب نلري ځکه چې قرآنکريم په عربي ژبه نازل شوی دی د عربې څخه پرته د قرآن يوازې ترجمه د قرآن حکم نلري.
لقوله سبحانه وتعالى: [ وَكَذَلِكَ أَنْزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا ][٢] .

---

([١])- الحامديه ص ١٢۶ / ابن عابدين .
([٢])- سوره طه: ١١٣

[وَكَذَلِكَ أَنْزَلْنَاهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا][1].

[قُرْآنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِي عِوَجٍ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ][2].

د أم القرى د پوهنتون متخصصين د پورته مسئلې د حرمت د بيان وروسته ليکي:

ځينې اسلام دوښمنه حلقي غواړي چې د عربي څخه پرته قرآن خپور کړي او دا کار په امت کې رواج کړي په دې بهانه چې خلک په عربي نه پوهيږي ددې کار څخه د هغوی لاندې دوه هدفه دي:

١ -د عربي پر وړاندې جنګ او مخالفت.

٢ -د عثماني مصحف د رسم تغيرول.

ځکه د عربي پر وړاندې جنګ او مخالفت د شريعت د ټولو علومو پر وړاندې جنګ دی او همدارنګه د هغه اهل او د هغوی د افکارو پر وړاندې جنګ دی ، په تحقيق سره پخواني او اوسني علماء په دې باندې متفق دي چې د عربي زده کول واجب دي ځکه چې د نورو شرعي علومو زده کول واجب دي.

الله سبحانه وتعالی ددې څخه عاجز نه وو چې پر بله ژبه قرآن نازل کړي لکن دا د دوښمنانو په زړه کې د عربي پر وړاندې يو حسد او عناد دی.

پس د عربي پر وړاندې مخالفت د هغه ژبې پر وړاندې مخالفت دی کومه چې الله تعالی غوره کړې ده.

---

([1])- سوره الرعد: ٣٧

([2])- سوره الرمز: ٢٨

إلى أمرين خطيرين تنتج عنهما آثار ناسفة لمقومات الأمة الإسلامية كلها ، وهما:

١- محاربة اللغة العربية..

٢- تغيير الرسم الاصطلاحي للمصحف العثماني..

ومحاربة اللغة العربية هي محاربة لجميع علومها ، واحتقار وازدراء لأهلها ، وأفكارهم واجتهاداتهم..

وقد أجمع العلماء – قديما وحديثا – على وجوب تعلم العربية ، لأن ما لا يتم الواجب إلا به فهو واجب . ولم يكن الرب – سبحانه – عاجزا عن إنزال القرآن بلغة غير العربية ، ومن هنا ينبعث الحسد والحقد في صدور الأعداء ! ومن هنا – أيضا – نعتقد أن كل من حارب اللغة العربية فإنما يحارب اللغة التي اختارها الله[١] .

## څلورم- د لمانځه بدعتونه

### ١- د لمانځه په نيت کې بې اصله مبالغه:

اصلاً د نيت ځاى زړه دى خو ځنې فقهاوو په ژبه تلفظ جايز بللى دى او په دې مسئله کې اختلاف هم دى نه غواړم چې دلته اختلافات بيان کړم مطلب دا چې که فرضاً په ژبه تلفظ جايز او مستحب هم شي خو خلکو واجب ګرځولى دى داسې چې تکبير اولى ورځخه تير شي نو دى په بار بار په ژبه سره نيت تکراروي يا خپل لمونځ ماتوي او بيا په ژبه نيت تکراروي

(١)- تحقيق الجامعة ام القرى .

داسې ګمان کوي چې په ژبه سره نیت ادا کول د لمانځه واجب او یا هم رکن دی .

فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي : «ولو نوی بلقلب ولم یتکلم بللسان جاز بلا خلاف بین الائمة لان النیة صل القلب لا عمل اللسان و استحباب ضمه الیه لما ذکرنا»[1] .

عالمګیري وایي :«النیت ادارة الدخول فی الصلاة والشرط ان یعلم بقلبه ای صلاة یصلی الخ ».

ابن قیم رحمه الله په «اغاثه اللهفان» کې ویلي دي : نیت عبارت له قصد او ارادې د یو کار د انجام د پاره چې ځای یې زړه دی او اصلاً په ژبه پورې هیڅ تعلق نه لري ، د نیت په باره کې د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه هیڅ ډول الفاظ نه دي ثابت شوي.

**۲- د لمانځه وروسته سجده کول :**

د فرض لمانځه نه پس په سجده پریوتل او په سجده کې دعا غوښتل څخه منع کړ شوی ده په درالمختار کې دی «ولکنها یکره بعد الصواة لان الجهلا ،یعتقدونها سنة أو واجبة»

د لمانځه څخه بهر د سجده تلاوت او سجده شکر پرته نورې سجدې نشته . او سجده شکر د نعمت رسیدو پر مهال مستحب ده .

[1] - غنیتة المستملي ص ۲۵۱-۲۵۲.

**۳- د فرض لمانځه وروسته په التزام سره** په زوره د «لا اله الا الله » دری ځله ویل مکروه او بدعت دی ، که څه هم د «لا اله الا الله » ویل افضلترین ذکر دی مګر دلته د مقید ذکر پر ځای کوم چې د لمانځه وروسته مسنونه اذکار دی ددې ذکر کول شرعي اصل نلري [1] .

ځکه چې د لمانځه وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دری ځله « أستغفر الله، أستغفر الله، أستغفر الله، أللهم أنت السلام ومنك السلام تبارکت یا ذا الجلال والاکرام [2]. او نور اذکار ثابت شوي دي.

**۴- د فرض لمانځه د ادا کولو وروسته به امام ښي** لور یا ګین لور ته مخ کړي تر څو لمونځ کوونکي په اشتباه کې واقع نشي او دوی پوه شي چې لمونځ ختم دی او د امام مخ نه اړول او پر خپل ځای د قبلې په لورې کیناستل بدعت دی.

جاء في المبسوط: «جُلُوسُ الْإِمَامِ فِي مُصَلَّاهُ بَعْدَ الْفَرَاغِ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ بِدْعَةٌ» [3].

**۵- د سنتو او نفلو وروسته په لوړ آواز اجتماعي** دعا لکه څنګه چې زمونږ په جوماتونو کې رواج لري د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابته نه ده .

[1] - فتاوی دار العلوم دیوبند ج ۱ ص ۵۰

[2] - رواه مسلم ۵۹۱

[3]- المبسوط ۳۸/۱ .

محمود الفتاوى حنفي ليكي : د سنتو او نفلو نه وروسته په لوړ آواز اجتماعي دعا له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه ثابته نه ده ، مګر انفرادي دعا جايز ده د دعا په تارک باندې ملامتيا نشته [1].

و قال العلامة الانور الكشميرى رحمه الله:

«فلا سبيل الى تبديع من رفع، و لا الى تجهيل من ترك، و امّا الامور المحدثة من عقد صورة الجماعة للدعاء كجماعة الصلاة و الانكار على تاركها و نصب امام ثم اهتمام به فيه و غير ذلك من قلة العلم و كثرة الجهل و الجاهل اما مفرط أو مفرّط» [2].

قال الطيبى فى شرح المشكوة:

«ان من اصرّ على امر مندوب و جعله عزماً و لم يعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشيطان» .

و فى الدر المختار:«و كل مباح يؤدى اليه الى الوجوب فمكروه» [3].

كفايت المفتي ليكي :

په دې باندې پوهيدل په كار دي چې د احاديثو او فقهې په كتابونو كې ددې هيڅ ثبوت نشته چې په قرون ثلاثه كې د دعا دا طريقه وه چې د سنتو نه وروسته تول په جمع سره دعا غواړي ، او كله چې په دې باندې دا قيود نور هم ور زيات شي چې امام د خلكو د فارغيدو پورې انتظار وي او يا يې په پريښودونكي باندې ملامتيا وي او په كولو يې الزام وي لكه نن

---

[1] - فتاوى المحموديه - النفائس المرغوبة.

[2] - النفائس المرغوبة: ص ۳۷.

[3] - الدر المختار مع الرد: ۵۵۷/۱.

زمان چې زمونږ د محلې حال دی نو بیا ددې په بدعت کې هیڅ شک او شبه نه پاتې کیږي .

ځکه د شریعت چې کوم مستحب او مباح حکم الزامي او ضروري وګڼل شي هغه بدعت ګرځي ځکه چې اسلامې شریعت چې کوم شی نه وي الزامي کړي هغه څوک له ځانه نشي الزامي کولای .

طیبي د مشکوت په حاشیه کې لیکي :

«من اصر على امر مندوب و جعله عزماً و لم يعمل بالرخصة فقد اصاب الشيطان من الاضلال فكيف من اصر على بدعة او منكر» [1].

یعنې : چا چې په کوم مندوب کار کې اصرار وکړ هغه یې ضرور وګڼلو او په هغه کې یې رخصت و نه کړ نو شیطان د هغه په ګمرا کولو کې کامیاب شو ، نو د هغه کس به څه حال وي چې په بدعت او منکر باندې اصرار کوي .

او بل دا چې د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم عادت مبارک دا ؤ چې سنت او نفل به یې په کور کې ادا کول .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «أفضل الصلاة صلاة المَرْءِ في بيته إلا المكتوبة » [2]

[1] - السعاية ١ / ١٠١.

[2] - رواه البخاري .

ژباړه: د سړي د پاره بغیر له فرضو څخه په کور کې لمونځ کول غوره او افضل دي .

عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «اجْعَلُوا مِنْ صَلاَتِكُمْ فِي بُيُوتِكُمْ. وَلاَ تَتّخِذُوهَا قُبُوراً» [1].

ژباړه: ابن عمر ﷺ وايي : رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمايي : تاسې خپل لمونځونه (سنت او نفل ) په کورونو کې کوئ او خپل کورونه قبرونه مه ګرځوئ .

هدايه ليکي : والافضل في عامة السنن و النوافل المنزل هو المروي عن النبی صلى الله عليه وسلم (هدايه – باب ادارک الفضريضة ).

نو بيا د سنتو او نفلو وروسته د اجتماعي يا دست جمعې دعا ثبوت له کومه شو ؟

**د فرض لمانځه وروسته اجتماعي دعا**

د دعا قبليدو له غوره وختونو څخه يو هم د فرض لمانځه وروسته وخت دی چې په دغه وخت کې دعا قبليږي

له ابی امامة ﷺ څخه روايت دی چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې کومه دعا قبليږي ؟ ويې فرمايل :

«جَوْفَ اللَّيْلِ الْأَخِيرِ وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ»[2] .

ژباړه: د شپې د آخرې حصې او د فرض لمونځونو وروسته .

[1] - متفق عليه .

[2]- رواه الترمذي و حسنه .

د فرض لمانځه وروسته مسنونه اذکار او دعا په اتفاق د فقهاوو سنت دي ، د اذکارو او دعا غوره وخت د فرض لمونځ وروسته دی او د سنتو وروسته هم جایز دي .

نو مؤمن چې کله لمونځ ادا کړي مسنونه اذکار به ووایي لکه : درې ځله استعفرالله ویل ، اللهم انت سلام ... آیت الکرسي ، (۳۳) ځله سبحان الله (۳۳) ځله الحمدلله (۳۳) ځله الله أکبر او یو ځل به (لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير) وایي تر څو سل ځله پوره او همداسې د لمونځ وروسته نور مسنونه اذکارو ویل او د هغه وروسته به د خپلې خوښې دعا وکړي .

د فرض لمانځه وروسته په یو صوت او اجتماعي توګه د مسنونه اذکارو او دعا ویل بدعت دی لکه څنګه چې په ځنې جوماتونو کې رواج دی لکه : «اللهم انت السلام ....» او « اللهم أجرني من النار ...» او یا «یا ارحم الراحمین أرحمنا ..»» او نور په یوه آواز سره په ډلیزه توګه ویل شرعي اصل نلري بدعت دی بلکي مسنونه اذکار به هر یو کس له ځانه سره وایي که احیاناً یو له بله سره یې غږ برابر شي باک نلري .

فتاوی هندیه لیکي : إِذَا دَعَا بِالدُّعَاءِ الْمَأْثُورِ جَهْرًا وَمَعَهُ الْقَوْمُ أَيْضًا لِيَتَعَلَّمُوا الدُّعَاءَ لَا بَأْسَ بِهِ وإذا تَعَلَّمُوا حِينَئِذٍ يَكُونُ جَهْرُ الْقَوْمِ بِدْعَةً [1] .

---

([1])- فتاوی هندیه ۳۱۸/۵ ، السنن و المبتدعات ص ۷۰ ، القول المبین في الأخطاء المصلمین ص ۳۰۴ ، صحیح الدعاء ص ۴۴۵.

ژباړه: کچیرې امام له مقتدیانو سره یو ځای په زوره مسنونه دعا د تعلیم او زده کړې لپاره ووایي باک نلري مګر د تعلیم پرته دا کار بدعت دی .

پاتې شوه د فرض لمانځه وروسته اجتماعي دعا داسې چې امام دعا کوي او مقتدیان آمین ورباندې وایي په دې باره کې د فقهاء کرامو اختلاف نظر دی :

**لومړی قول :**

جمهور فقهاء د قنوت نازله او بل ټولنیز مقصد پرته د لمانځه وروسته اجتماعي دعا بدعت ګڼي او دوی وایي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ، صحابه رضی الله عنهم او ائمه رحمهم الله څخه د دعا داسې شکل لکه څنګه چې اوس په څنو جوماتونو کې رواج لري ثابت شوی نه دی نظر په لاندې دلائلو :

علي ﷺ روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به د فرض لمانځه وروسته د ځانه سره (انفرادي )داسې دعا کوله « اللهم اغفرلي ما قدمت و ما أخرت ، وما أسررت و ما أعلنت أنت الهي لا اله الا أنت »[1]

او همداسې د سهار له لمانځه وروسته به یې دا دعا کوله «اللهم اني أسألک علماً نافعاً ، وعملاً متقبلاً ، ورزقاً طیباً » [2].

په پورته دعاګانو کې صیغه د مفرد ده چې په یوازوالی باندې دلالت کوي.

[1]- حاشیه فتح الباري و ابن حبان .

[2]- رواه احمد و ابن ماجه .

او له ام سلمة ﷺ نه روايت دی چې : « أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يمكث اذا سلم يسيراً»[1] .

او له انس ﷺ څخه روايت دی چې : «صليت خلف النبي صلى الله عليه وسلم ، فكان اذا سلم يقوم ، و صليت خلف ابي بكر ﷺ ، فكان اذا سلم وثب كأنه على رَضْفَه »[2].

جاء في الموسوعة الفقهية :

لَمْ أَجِدْ مَنْ يَقُولُ بِالتَّأْمِينِ عَلَى دُعَاءِ الإِمَامِ بَعْدَ الصَّلاةِ إِلا بَعْضَ الْمَالِكِيَّةِ . وَمِمَّنْ قَالَ بِجَوَازِهِ ابْنُ عَرَفَةَ ، وَأَنْكَرَ الْخِلافَ فِي كَرَاهِيَتِهِ[3] .

احسن الفتاوى ليکي : چې همدا ډول تر فرضو وروسته چې کومه دعا د امام سره يو ځای کيږي دا هم ثابته نه ده او کچېرې اتفاقاً له امام سره يو ځای شي باک نلري او د لازم والي په وجه دغه کار بدعت جوړيږي دا يو فقهې قاعده ده چې هر مباح يا مستحب کار لازم ګرځول نا جايز ګرځي د فرضو او نوافلو تر مينځ دومره فرق دی چې تر سنتو او نفلو وروسته اجتماعي دعا کول او د هغه لازم ګرځولو کې دومره قباحت دی چې تر فرضو وروسته دا ډول دعا کې نشته[4].

كفايت المفتي ليکي: ان الدعاء المعمول في زماننا بعد الفريضة رافعين ايديهم على الهئية الكذائية لم تكن المواظبة عليه في عهده عليه صلاة

---

[1]- رواه البخاري ٨٣٧ .

[2]- رواه الطبراني في المعجم الكبير :٧٢٧ و وثقه ابن حبان .

[3]- الموسوعة الفقهية ج ١ ص ١١٦ .

[4]- احسن الفتاوى ج ٣٤٤/١ .

والسلام ، نعم الادعية بعد الفريضة ثابتة كثيراً بلا رفع اليدين و بدون الاجتماع [1].

**دوهم قول** : ځنې فقهاء په خاصه توګه متأخرين مالكيه د فرض لمانځه وروسته داسې دعا چې امام دعا كوي او مقتديان آمين وربانديې وايي جايز بولي او په لاندې دلائلو استلال كوي:

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ ، وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ] [2].

هغوى دا وايي چې د « فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ» يو تفسير دا دى چې كله د لمانځه څخه فارغ شې نو دعا كوه .

او د ابى امامه ﷺ په حديث استلال كوي « جَوْفَ اللَّيْلِ الْأَخِيرِ وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ » او همدارنګه په دې حديث باندې استلال كوي « عَنْ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ إِذَا سَلَّمَ : (لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ ، لَهُ الْمُلْكُ ، وَلَهُ الْحَمْدُ ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ، اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ ، وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ ، وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ» [3].

او دليل لپاره يو هم مسند أحمد دا حديث شريف وړاندې كوي چې:

«عن ابى هريرة ﷺ أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يدعو في دبر صلاة الظهر : اللهم خلص الوليد و سلمة بن هشام و عياش بن ربيعة و

---

[1] - كفايت المفتي ٣١٠/٣ بحواله العرف الشذى على الترمذي باب ما جاء في كراهية أيخص الامام نفسه بالدعاء ٨٧/١ .

[2] - سوره الشرح : ٨،٧ .

[3] - متفق عليه .

ضعفة المسلمين من أيدي المشركين ، الذين لا يسطيعون حيلة و لايهتدون سبيلا[1].

د پورته رواياتو څخه د لمانځه وروسته مسنونه اذکارو او دعاګانو ثبوت دی چې په هغه باندې د امت اتفاق دی او ورستی حدیث د قنوت نازله په اړه راغلی دی [2].

خلاصه : پورته دلائلو ته په کتلو سره لومړي قول راجح دی ځکه هیڅ داسې صحیح روایت نشته چې په هغه کې دې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو څخه اجتماعي دعا ثابت وې په داسې شان سره لکه څنګه چې نن عصر کې رواج لري. و الله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب .

**۶- د جماعت د لمانځه وروسته په زوره درود شریف ویل :**

په دې کې هیڅ شک نشته چې د درود شریف ویل زیات فضیلت لري په ټولو خطبو کې درود شریف لوستل کیږي ، په لمانځه کې د تشهد وروسته درود شریف لوستل کیږي مګر د جماعت د لمانځه وروسته د درود شریف لوستل نه له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه له صحابه کرامو رضی الله عنهم ، نه ائمه کرامو رحمهم الله څخه ثابت شوی نه دی .

فتاوی اللجنة الدائمه وایي : «ولم يثبت عن النبي ﷺ ولا عن أصحابه رضي الله عنهم، ولا عن الأئمة من السلف: مالك وأبي حنيفة والليث بن

---

[1]- مفهوم البدعة ص ۱۹۹ .

[2]- فتح الباري : ۹۵۶۵ .

سعد والشافعي والأوزاعي وأحمد رحمهم الله تعالى أنهم كانوا يصلون عليه ﷺ بعد الصلاة جماعة جهراً، والخير كل الخير في اتباع هديه ﷺ وهدي خلفائه الراشدين وسائر الصحابة رضي الله عنهم، وقد ثبت عنه ﷺ أنه قال: "من أحدث في أمرنا هذا ما ليس منه فهو رد»[1].

**٧- د قضايي عمري لمونځ هيڅ اصل نلري:**

قضايې عمري په دين کې هيڅ اصل نلري داسې چې د چا څخه ډير لمونځونه قضا شوي وي او هغه د قضايي عمري په نيت څو رکعته نفل لمونځ وکړي نو دا د ټولو قضايي لمونځونو کفاره ده دا عمل د دين څخه د ناخبره خلکو کار **دی** په دين کې هيڅ اصل نلري[2].

که د چا څخه زيات لمونځونه قضا شوي وي او شمير نه وي ورته معلوم وي نو هغه به په غالب ګمان باندې د قضايي لمونځ د شمير په اندازه قضايي راوړي.

د دريو مکروهه وختونو څخه پرته نور هر وخت قضايي ادا کولای شي.

جاء في مراقي الفلاح : من عليه فوائت كثيرة لا يدري عددها، يجب عليه أن يقضي حتى يغلب على ظنه براءة ذمته.

**٨- د «الرَغائب » په نوم لمونځ اصل نلري :**

د «صلاة الرغائب » لمونځ دوولس رکعته دی چې د ماښام او ماسختن تر مينځ د رجب مياشتې په اوله جمعه ادا کيږي همداسې د شعبان مياشتې

---

[1] - اللجنة الدائمة - المجلد السادس والعشرون.

[2] - فتاوى دارالعلوم ديوبند ج ١ ص ٢١٥.

د پنځلمسې شپه باندې زر ركعته لومونځ كول اصل نلري .
ابن عابِدين رحمه الله په حاشيه درالمحتار كې ليكي : قال في "البحر" : ومن هنا يعلم كراهة الاجتماع على صلاة الرغائب التي تفعل في رجب في أولى جمعة منه وأنها بدعة. . .
وللعلامة نور الدين المقدسي فيها تصنيف حسن سماه "ردع الراغب عن صلاة الرغائب" أحاط فيه بغالب كلام المتقدمين والمتأخرين من علماء المذاهب الأربعة " انتهى باختصار [1].
امام نووى رحمه الله په المجموع كې وايي :
" الصلاة المعروفة بصلاة الرغائب , وهي ثنتا عشرة ركعة تصلى بين المغرب والعشاء ليلة أول جمعة في رجب , وصلاة ليلة نصف شعبان مائة ركعة وهاتان الصلاتان بدعتان ومنكران قبيحتان ولا يغتر بذكرهما في كتاب قوت القلوب , وإحياء علوم الدين , ولا بالحديث المذكور فيهما فإن كل ذلك باطل ، ولا يغتر ببعض من اشتبه عليه حكمهما من الأئمة فصنف ورقات في استحبابهما فإنه غالط في ذلك , وقد صنف الشيخ الإمام أبو محمد عبد الرحمن بن إسماعيل المقدسي كتابا نفيسا في إبطالهما فأحسن فيه وأجاد رحمه الله " انتهى [2].
وقال النووي – أيضاً – في شرح مسلم:

[1] - حاشيه ابن عابدين ٢/٢٦
[2] - المجموع / امام نووي .

"قاتل الله واضعها ومخترعها , فإنها بدعة منكرة من البدع التي هي ضلالة وجهالة وفيها منكرات ظاهرة . وقد صنف جماعة من الأئمة مصنفات نفيسة في تقبيحها وتضليل مصليها ومبتدعها ودلائل قبحها وبطلانها وتضليل فاعلها أكثر من أن تحصر " انتهى.

**٩- صلاة غوثيه :**

دا د بريلويانو او نورو بدعتي كسانو عمل دی چې دوه ركعته لمونځ ادا كوي او بيا د بغداد په لورې ( شيخ عبد القادر د قبر ) لورې ته يوولس قدمونه اخلي او بيا شيخ ته آواز كوي او په هغه باندې استغاثه كوي او خپل حوائج ورته بيانوي (نعوذ بالله ) من ذالک ، چې يو شركي عقيده ده ځكه استغاثه بالغير الله ده [اياک نعبد و اياک نستعين] .

وأيضا هناك صلاة غوثية: وصورتها أن يصلى ركعتين، ثم يخطو إلى بغداد إحدى عشرة خطوة، وكلما يضع قدمه يستغيث بالغوث "أي الشيخ الجيلاني" ويناديه باسمه ويقدم حاجته [١].

## په لمانځه كې خپرې شوي خطاوې

په لمانځه كې ځنې خپرې شوې خطاوې دي چې ځنې بدعت ، ځنې مكروه او ځنې حرام چې په لاندې ډول دي :

١- كله چې لمونځ كوونكی ګمان وكړي چې جماعت ولاړ دی نو په منډه او

---

[١] – موقع الدرر السنية – موسوعة الفرق .

[3] – رواه البخاري : ٦٠٠.

تيز تګ سره جومات ته ځې حال دا چې جومات ته تيز تلل مکروه او په سکون او وقار سره تلل سنت دي .

جناب نبی صلی الله علیه وسلم فرمايي: «إِذَا سَمِعْتُمْ الْإِقَامَةَ، فَامْشُوا إِلَى الصَّلَاةِ وَعَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ وَالْوَقَارِ، وَلَا تُسْرِعُوا، فَمَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوا، وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوا» (١).

ژباړه : کله چې تاسې اقامت واروئ نو د لمانځه طرف ته په په آرام او خشوع سره ځئ او تيز مه ځئ ، څه مو چې ومودل هغه ادا کړئ (له امام سره) او څه چې درڅخه پاتې وو هغه پوره کړئ .

٢- په جماعت کې به دوهم صف د امام په برابر جوړيږي مګر ځنې کسان له ښي لوري يا چپ لوري صف پيل کوي چې دا کار د سنتو خلاف دی په دليل د دغه حديث شريف «وسطوا الإمام وسدوا الخلل»[٢] .

٣- د تکبير تحريمه پر مهال لاسونو چې تر غوږنو پورته کيږي د ګوتو پراخه نيول او د لاسونو پنجې او ورغوي قبلې ته مخامخ کول سنت دي ، مګر ځنې کسان ګوتې پيوسته او د لاسونو ورغوي د قبلې پر ځای خپلو عوږونو طرف ته برابروي.

٤ -د قيام پر مهال د سجدې ځای ته کتل سنت دي مګر ځنې کسان د سجدې د ځای څخه پرته يو اړخ او بل اړخ ته ګورې چې داسې کول

---

[٢]- رواه ابؤداود .

مکروه د لمانځه حضور خرابوي او کچېرې د کتلو سره سینه وګرځوي لمونځ فاسدیږي.

عایشه ﷺ وايي : د رسول الله علیه وسلم څخه مې په لمانځه کې یوې بلې خوا کتلو په اړه پوښتنه وکړه ویې فرمایل: « هو اختلاس یختلسه الشیطان من صلاة العبد»[1] .

یعنې : دا یوه پټه غلا ده چې شیطان یې د بنده له لمانځه څخه وړي.

۵ -ځنې کسان پر خپل بدن ، جامه او ویښتانو لوبې کوي او لاس وربانديې وهي چې دا عمل اصلاً په لمانځه کې د خشوع او حضوع نه لرلو نښانه ده او لږ حرکت کولو سره لمونځ مکروه کيږي.

مګر په لمانځه کې زیات حرکت کول او ډیر ښورېدل چه کتونکی فکر وکړي دا سړی لمونځ نه کوي مثلاْ د ځان ډیر ګرول یا د جامو برابرول یا په بدن اوجامو ډیر لاس وهل عمل کثیر بلل کیږي لمونځ یې فاسد ګرځي.

جاء في الموسوعة الفقهية:

اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى بُطْلانِ الصَّلاةِ بِالْعَمَلِ الْكَثِيرِ ، وَاخْتَلَفُوا فِي حَدِّهِ . فَذَهَبَ

الْحَنَفِيَّةُ إِلَى أَنَّ الْعَمَلَ الْكَثِيرَ الَّذِي تَبْطُلُ الصَّلاةُ بِهِ هُوَ مَا لا يَشُكُّ النَّاظِرُ فِي فَاعِلِهِ أَنَّهُ لَيْسَ فِي الصَّلاةِ.

۵ -په لمانځه کې په ادب دریدل سنت دي:

په لمانځه کې د قیام پر مهال به د پښو تر مینځ متوسطه او معمولي

---

[1] - رواه ابوداود و نسائي .

فاصله چې نه ډيره کمه او نه ډيره زياته وي موجوده وي ځکه چې په متوسطه فاصله کې خشوع او ادب دی د متوسطې فاصلې نه لږه يا زياته فاصله مکروه د سنتو خلاف عمل دی .

دغه متوسطه اندازه ائمه کرامو رحمه الله عليهم داسې بيان کړې ده:

د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د پښو تر مينځ فاصله د څلورو ګوتو په اندازه.

د امام شافعي رحمه الله په نزد د يوې لوېشتې په اندازه.

د امام مالک رحمه الله په نزد متوسطه اندازه مستحب ده چې نه کمه وي او نه ډيره زياته.

د ائمه کرامو د اقوالو څخه متوسطه اندازه څرګنديږي .

اللجنة الدائمة ليکي:

په قيام کې د پښو نښلول او همدارنګه د پښو تر مينځ زياته فاصله پريښودل په سنتو او صحيح حديث سره ثبوت نه لري ،بناءً لمونځ کوونکی به پښې نه نښلوي او نه به د پښو تر مينځ زياته فاصله پرېږدي بلکي معتدله فاصله به وي.

جاء في فتاوى اللجنة الدائمة: لم يرد في السنة المطهرة حديث صحيح صريح يفيد إلصاق القدمين في حال القيام في الصلاة أو في حال السجود وبناء على ذلك ، فالأصل أن المصلي لا يتكلف إلصاقاً ولا تفريجاً كثيراً بين رجليه بل يكون معتدلاً .[1]

---

[1]- فتاوى اللجنة الدائمة" (٣٧٥/٥)

۶ -په صحي شان رکوع کول:

رکوع د لمانځه رکن دی د رکوع لپاره داسې تیتېدل پکار دي چې د لاسونو په پراخه ګوتو به ګوندې نیسي سر به د شا سره یو شان وي او درې ځله به په کراره او سکون سره د رکوع تسبیح وایي.

ځنې کسان لېدل کیږي چې په ډیره بیړه رکوع کوي تسبیحات صحي نه لولي ، سر له شا سره سم نه وي ، داسې رکوع چې په هغه کې اطمنان نه وي ( اندامونه کرار ونه نیسي ) او حتی یو ځل هم صحي تسبیح ونه وایي داسې رکوع نه صحي کیږي لمونځ فاسد دی.

رسول الله صلى الله علیه وسلم په رکوع کې د پوره سکون حکم کړی او سکون په ټولو ارکانو کې واجب دی : «ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا..» [۱]

ژباړه : وروسته رکوع ته لاړ شه تر هغه چې بدن دې آرام او بې حرکته شي.

عائشه ﵂ روایت کوي: «کان رسول الله صلّى الله علیه وسلم إذا رکع لم یرفع رأسه ولم یُصَوِّبْهُ، ولکنْ بین ذلك »[۲]

ژباړه : رسول الله صلى الله علیه وسلم به چې کله رکوع کوله سر به یې ( له شا سره ) برابر ؤ نه پورته ؤ او نه ټیټ.

۷ -قومه کول:

د رکوع څخه پورته کېدل (سمع الله لمن حمده – ربنا لک الحمد) ویل او په سکون او اطمان درېدلو ته قومه وایي.

---

[۱]- متفق علیه

[۲]- متفق علیه

قومه د متأخرينو احنافو په نزد واجب او د امام يوسف رحمه الله په نزد فرض ده.

زيات كسان په صحي شان ، سكون او اطمنان سره قومه نه ادا كوي.

وَرُوِيَ وُجُوبُهَا،وَهُوَالْمُوَافِقُ لِلأَدِلَّةِ وَعَلَيْهَا لْكَمَالُ ابْنُ الْهُمَامِ وَمَنْ بَعْدَهُ مِنَا لْمُتَأَخِّرِينَ . وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ بِفَرْضِيَّةِ .[1]

٨ -سجده كول:

دوه ځله سجده كول په لمانځه كې فرض دي ،سجده په اوو اندامونو تر سره كيږي په سجده كې د پوزې نه لګول يا د دواړو پښو په پورته كولو سره سجده نه ادا كيږي.

د پښتو په يو ځل او څو ځله پورته كولو كې د فقهاؤ تر مينځ اختلاف شته دلته مو احتياطاً او د اصلاح لپاره د يو ځل پورته كولو قول را نقل كړى دى.

كه دواړه پښى په ټوله سجده كې پورته كړ شي نو سجده نه ادا كيږي كله چه سجده ادا نشو نو لمونځ فاسد شو [2].

دا ځكه چې سجده بايد په اوو اندامو ادا شي ، جناب نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايي:

« أُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ عَلَى الْجَبْهَةِ وَأَشَارَ بِيَدِهِ عَلَى أَنْفِهِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَأَطْرَافِ الْقَدَمَيْنِ وَلَا نَكْفِتَ الثِّيَابَ وَالشَّعَرَ » [3]

---

[1]- برنامج الموسوعة الفقهية جزء ٢٧ ص ٧٩

[2]- فتاوي دارالعلوم ديوبند ج ١ ص ١٨٤

[3]- رواه البخاري و مسلم .

ژباړه: ما ته حکم راکړ شوی دی (د الله د طرف نه ماته حکم شوی دی ) چه زه په اوو اندامونو باندې سجده وکړم یعنی سجده داسې وکړم چه دا اوه اندامونه پر ځمکه ایښودل شوی وي تندی ، دواړه لاسونه ،دواړه ګونډې ،او د دواړو پښو کنارې او دا هم حکم دی چه مونږ به خپلې جامې او ویښتان نه راغونډوو.

زیات کسان په بیړه د ټونګې په شان سجده کوي چې هیڅ سکون او اطمان پکې نه وي پرته له سکون او اطمان څخه لمونځ نه صحي کیږي ځکه سکون واجب دی د واجبو په قصداً او عادتاً ترک کولو سره لمونځ فاسدیږي.

۹ -جلسه کول:

جلسه کول – یعنی د دوو سجدو په مابین کې په ښه شان کیناستل چه د بدن ټول اندامونه کرار شي او د پوره ناستي ګمان پری وشي.

په دلیل د دغه حدیث شریف :« ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا»[۱]

یعنې : بیا سجده ادا کړه داسې چې بدن دې آرام او بې خځښته شي بیا دې سر له سجدې پورته کړه تر څو د کیناستلو په حال کې آرام او بې حرکته شي.

قومه او جلسه د متخرینو احنافو په نزد واجب ده مګر د امام یوسف امام مالک ، امام شافعي او امام احمد په نزد قومه ، جلسه او د لمانځه

[۱]- متفق علیه

په ټولو ارکانو کې سکون او اطمنان فرض دی:

جاء فی موسوعة الفقهية:

الجلوس بين السّجدتين: ذهب المالكيّة ، والشّافعيّة ، والحنابلة إلى أنّه ركن ، لما روت عائشة رضي الله تعالى عنها قالت : « كان النّبيّ ﷺ إذا رفع رأسه من السّجدة لم يسجد حتّى يستوي جالساً . « وقال أبو يوسف من الحنفيّة بفرضيّته.

ځنی کسان د چرګ په شان ټونګې وهي چه لمونځ يې نه صحي کيږي ځکه که جلسه واجبه وبولو د واجبو په قصدي ترک سره لمونځ فاسديږي او که فرض يې وګڼو د فرض په ترک سره لمونځ نه صحي کيږي.

په تيزی او بې سکون لمونځ کول د منافق لمونځ دی د داسې لمونځ کولو ثخه ځان ساتل پکار دي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : «تَلْكَ صلاة المنافق، تلك صلاة المنافق، تلك صلاة المنافق، يَرْقُبُ الشَّمْسَ حتى إذا كانَتْ بَيْنَ قَرْنَي شيطان قَامَ فَنَقَرَهَا أربعاً لايذكر فيها إلا قليلا» [1]

يعني : دا د منافق لمونځ دی ، دا د منافق لمونځ دی ، دا د منافق لمونځ دی چه سرې ناست وي د لمر انتظار کوي تر څو ښه زيړ شي او د شيطان د دوه ښکرو په منځ کې راشي – نو پاڅي ثلور تونګې ووهي او په دې کې الله ډير کم ياد کړي.

خبرداریځ:

[1] - رواه مسلم .

د لمانځه ټول ارکان په سکون او اطمنان سره ادا کول واجب او د امام یوسف حنفي امام مالک ، امام شافعی او امام احمد په نزد فرض دي ، ډير کسان لمونځ په سکون سره نه ادا کوي خصوصاً رکوع ، قومه ، سجده او جلسه صحي نه ادا کوي کچېرې د لمانځه ارکان په سکون سره ادا نشي لمونځ نه صحي کيږي په دليل د دغه حديث:

رسول الله صلَى اللَّهِ عليْه وآله وسلّم يو سړی وليد چې په نا سم ډول او بدون له طمأنيه لمونځ کوي (په لمانځه کې حرکت کول او په بيړه د ارکانو ادا کول ) امر يې ورته وکړ چې لمونځ دې له سره ادا کړه «إرْجِعْ فَصَلِّ فَإِنّكَ لَمْ تُصَلِّ» يعنى لمونځ له سره وګرځوه ځکه چې تا لمونځ ونه کړ هغې کس درى ځله لمونځ له سره وګرځولو او وروسته يې وويل يا رسول الله صلى الله عليه وسلم قسم په هغه ذات چې ته يې په حق را استولى يې تر دې غوره نشم ادا کولى نو ماته لمونځ راوښې رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل:

«إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ، ثُمّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ، ثُمَّ اقْرَأْ مَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَعْدِلَ قَائِمًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ افْعَلْ ذَلِكَ فِي صَلاتِكَ كُلِّهَا» [1].

ژباړه : کله چې د لمانځه د پاره اراده کوې کامل اودس وکړه ، وروسته دې مخ پر قبله کړه او تکبير ووايه ،وروسه د قرآن څخه هغه حصه ووايه

[1] - رواه البخاري ۷۵۷ ، ومسلم ۳۹۷ .

چې درته آسانه وي ،وروسته رکوع ته لاړ شه تر هغه چې بدن دې آرام او بې حرکته شي ، بیا له رکوع پورته شه په سم او آرام ډول دریدلو سره ، بیا سجده ادا کړه داسې چې بدن دې آرام او بې خځښته شي بیا دې سر له سجدې پورته کړه تر څو د کیناستلو په حال کې آرام او بې حرکته شي وروسته همدا عمل په ټول لمانځه کې کوه

۱۰ – د قعدې پر مهال سینې ته کتل او د شهادت د کوتې پورته کولو پر مهال د شهادت کوتې ته کتل پکار دي مګر ځنې کسان یوې او بلې خوا ته ګوري.

کله چې مقتدي تشهد ووایي او امام سلام ګرځوي متقدي به د امام سره سلام ګرځوي مګر ډیر کسان لیدل کیږي چې د امام سره سلام نه ګرځوي ، درد او دعا وایي او بیا سلام ګرځوي دلته د سنت پر ځای د واجبو ترک راځي.

۱۱ -د سلام ګرځولو پر مهال خپل ښي او کیڼې اوږې ته کتل سنت دي مګر ځنې کسان د اوږو پر ځای یوې او بلې خوا ته داسې سلام ګرځول چې د سر له ګرځولو سره سینه هم ګرځوي.

۱۲- په جومات کې د لمانځه لپاره د تل لپاره یو ځای ټاکلو څخه نهی او منع شوي ده په حدیث شریف راغلي دي:

«نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَقْرَةِ الْغُرَابِ ، وَافْتِرَاشِ السَّبْعِ ، وَأَنْ يُوَطِّنَ الرَّجُلُ الْمَكَانَ فِي الْمَسْجِدِ كَمَا يُوَطِّنُ الْبَعِير» [1].

[1]- روى أحمد (۴۲۸/۳) ، وأبو داود (۸۶۲)، و سلسلة الصحيحة :۱۱۶۸ .

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم په لمانځه د سجدې پر مهال د کارغه پشان ټونګو وهلو ، د سجدي پر مهال د ځنګلو ، ورنو وصلول له ځمکې سره او دا چې يو کس د اوښ په څير په جومات کې يو ځای وټاکي منع فرمايلې .

په المبسوط کې راغلي : وَلَا يَشْتَغِلُ بِالتَّطَوُّعِ فِي مَكَانِ الْفَرِيضَةِ لِلْحَدِيثِ الْمَرْوِيِّ: «أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ إذَا صَلَّى أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ بِسُبْحَتِهِ أَيْ بِنَافِلَتِهِ» ، وَلِأَنَّهُ يُفْتَنُ بِهِ الدَّاخِلُ أَيْ يَظُنُّهُ فِي الْفَرِيضَةِ فَيَقْتَدِي بِهِ وَلَكِنَّهُ يَتَحَوَّلُ إلَى مَكَان آخَرَ لِلتَّطَوُّعِ اسْتِكْثَارًا مِنْ شُهُودِهِ، فَإِنَّ مَكَانَ الْمُصَلِّي يَشْهَدُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالْأَوْلَى أَنْ يَتَقَدَّمَ الْمُقْتَدِي وَيَتَأَخَّرَ الْإِمَامُ لِيَكُونَ حَالُهُمَا فِي التَّطَوُّعِ [1] .

ژباړه: امام به د فرضو پر ځای په سنتو او نفلو نه مشغوليږي په دليل د دغه حديث : «آيا د تاسې څخه کوم يو ددې څخه عاجز دی چې کله لمونځ کوي مخکې شي يا وروسته شي او سنت او نفل وکړي » ځکه چې دا خلک په فتنه کې اچوي او ګمان کوي چې هغه فرض لمونځ ادا کوي په هغه پسې اقتداء کوي مګر هغه به د نفلي لمانځه لپاره خپل ځای ته تغير ورکوي ځکه چې د لمانځه ځای د قيامت په ورځ په سړي باندې ګواهي ورکوي نو په دې عمل سره به يې د شهادت او ګواهي ځايونه زيات شي .

۱۳- ځنې مسلمانې خويندې د عذر پرته په ناسته سره لمونځ کوي عذر لکه : مرض ، حمل او نور چې نشي کولای په ولاړه لمونځ وکړي مګر د عذر

[1]- المبسوط ۳۸/۱ .

پرته په ناستي سره لمونځ نه صحي کیږي او دا چې ورځني کارونه په ولاړه کولای شي خو لمونځ د ستومانی له کبله په ناسته کوي شرعي عذر نشي کیدای .

۱۴- ځنې کسان دا باور لري چې د سنتو او فرضو تر مینځ خبرې کول ښه کار نه دی حتی دا باور لري چې په خبرو کولو سره سنت ماتیږي باید له سره وشي په دې اړه مې هیڅ شرعي دلیل پیدا نه کړ ، بلکې د دوو لمونځونو تر منځ خبرې کول او د ځای تغیرول سنت عمل دی له معاویه ﷺ څخه روایت نقل شوی دی چې :«فإِنَّ رسول الله - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -أمَرَنا أن لا تُوصَل صلاة بصلاةٍ حتى نتكلَّم أو نخرج»[1].

و ما توفيقي الا بالله عليه توكلت واليه انيب

الله تعالی دې اول زما لمونځ اصلاح کړي بیا د ټولو مسلمانانو د چا چې لمونځ سم شو د هغه دنیا او آخرت سم شول.

[1]- رواه مسلم ۸۸۳ .

# د جنازې ، دفن او قبرونو بدعتونه

۱- د مړي څخه د حائضې او نفاسې ښځې لرې ساتل[1] .

۲- دا اعتقاد لرل چې د مړي روح په هغه ځای باندې ګرځي په کوم ځای چې وفات شوی وي .

۳- په کوم ځای چې مړي ته غسل ورکړ شوی وي په هغه ځای باندې درې ورځې چراغ بل ساتل .

۴- مړي ته د غسل پر مهال خاص اذکار او دعاګانې لوستل .

۵- په کفن باندې د اذکارو او اعیه لیکل .

۶- د جنازې سره د هغه تصویر او یا ګلان ایښودل .

۷- دا اعتقاد لرل چې که مړی صالح وي نو جنازه یې سپکه وي .

۸- د جنازې د لمانځه پر مهال د نجاست او غذر پرته د بتانو ایستل .

کچېرې په بوټونو باندې نجاست نه وي نو د جنازې لمونځ د بوټونو سره او همدارنګه بوټونو ایستلو دواړو حالاتو کې جایز دی .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَخْلَعْ نَعْلَيْهِ بَيْنَ رِجْلَيْهِ ، أَوْ لِيُصَلِّ فِيهِمَا (رواه حاکم ).

نو د جنازې په لمانځه کې د بوټونو په ایستلو باندې الزام لګول او د بوټونو نه ایستل بد ګڼل په دین کې بدعت دی .

۹- د مړي د پور او قرض په خلاصولو کې غفلت او یا یې بالکل ترک کول او د هغه پر ځای د نوم او شهرت خیراتونه کول ځکه که نوم او شهرت

---

[1]- مفهوم البدعة ص ۱۷۹ .

يې مطلب نه واى د مړي روح ته يې ايصال ثواب مطلب واى نو هغوى به د شريعت موافق لومړى د هغه قرضونه ادا كولاى .

وَعَنْ أَبي هُرَيْرَةَ ﷺ، عَنِ النَّبِيِّ -ﷺ- قَالَ: «نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهِ حَتَّى يُقْضَى عَنهُ» (رَوَاهُ أَحْمدُ وَابْنُ مَاجَه وَأَبُو يعْلى وَالتِّرْمِذِيُّ –وَحَسَّنَهُ).

ژباړه: له ابى هريره ﷺ څخه روايت دى چې رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي : د مسلمان سړي روح د هغه د قرض سره تړلې وي تر هغه پورې څو يې قرض ادا شي .

۹- پر قبر باندې خوراک ايښودل تر څو خلک يې وخوري بدعت دى ځکه د ايصال ثواب او خيرات لپاره قبر او بل او خاص ځاى شرط نه دى.

۱۰- د زيارت لپاره د وخت ټاکل لکه : د عيد ورځ ، د عاشورا ورځ او نور، مګر که څوک په دې نيت کوم وخت مثلاً د جمعې ورځ انتخاب کړي چې په دغه ورځ فراغت وي باک نلري .

۱۱- په جومات کې د مړي دفن کول .

۱۲- د دفن وروسته په اجتماعي توګه په زوره کلمه ويل او په قبر باندې آذان کول اصل نلري[2] .

۱۳- په قبرونو کې چراغ يا شمع بلول چې د حديث په نص سره حرام دى رسول الله صلى الله عليه وسلم په قبرونو باندې په چراغ بلونکو لعنت فرمايلى دى[1] .

۱۴- څادر غوړول يا په رخت کې پوښل وغيره چې ددې څخه هم په حديث کې صريح مخالفت شوي دى[۱] .

۱۵- د مړو په نوم نذر منل چې مطلق حرام شرک دی[۱] .

۱۶- بیا د نذر تبرک ګڼل او د هغی خوړل او تقسیمول حرام دي[۱] .

۱۷- په قبرونو ساز او سرود کول ساز او سرود خو هسی هم حرام دی چې د هغی په ممانعت کې ډیر احادیث راغلي خو د قبرونو پر سر باندې د جرم د پاسه جرم دی [۱] .

۱۸- په قبرونو باندې د ښځو جمع کیدل کچیرې د غم د تازه کولو ، ژړا او نورو منکراتو لپاره وي په اړه دا حدیث راغلی «لعن الله زائِرات القبور» یعنې: (الله تعالی لعنت کړی دی پر هغو ښځو چه د قبرونو زیارت وکړي) او که د پورته منکرات پرته وي باک نلري. [۱]

وزيارة النساء إن كانت لتجديد الحزن والبكاء والندب على ما جرت به عادتهن لا تجوز، وعليه حمل حديث «لعن الله زائرات القبور» فإن كانت للاعتبار والترحم من غير بكاء، فلا بأس.

۱۹- د قبرونو پوخ او اوچت جوړول « نهی رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يُجَصَّصَ الْقَبْر وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيه وَأَن يُبْنى عَلَيه أو يَزاد عليه أو يُكتب عليه» [۱]

یعنې : رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمایلی د قبر له پوخ جوړولو،په هغه باندې کښیناستل ،یا دځه شی زیاتول ،د هغه لپاره عمارت جوړول ،یا په هغه لیکل (د نوم او تاریخ وغیره لیکل هم پدی نهی کې شامل دی ).

مګر د قبر نښه کول په ډبره یا بل شی جائز دي[۱] .

۲۰- د قبر نه طواف کول چې قعی حرام دي (ملا علی قاری رحمه الله وایې طواف یواځې کعبې شریفې ته خاص دی او بس ) او که د عبادت په نیت وي کفر دی [۱].

۲۱- قبر یا زیارت ته سجده کول که قصداً وی صریح کفر دي او که بې قصده وي ګناه کبیره ده [۱].

۲۲- مړو ته د ثواب رسولو جایز دي ، ایصال ثواب روح د خپلوانو او عامو مؤمنانو ته کار دخیر او موجب د اجر دی مګر د ورځې ،نیتې ،دریمه ،څلویښتمه ،کال اوغیره مقررول نه دي په کار [۱].

۲۳- د جنازې د لمانځه نه پس امام خلکو ته وایې چې دری ځله قل هو الله ووایئ او ثواب یې دغه مړی ته وبښئ دا کار شرعاً څنګه دی ؟

ځواب فتاوی دارالعلوم دیوبند : «اقوال وبه نستعین» صحیح ده خو عالم صیب ته ددی د فرمان څه ضرورت نشته او د صحابه کرامو او تابعینو او امامانو د دین نه دا عمل ثابت نه دی، د جنازی لمونځ کافی دی «ولکم فی رسول الله اسوة حسنه» والله اعلم [۱].

۲۴- داولیاء کرامو او نیکو خلکو د قبرونو ښکلول د هغه د قبر خاورې مبارکې ګنل او د قبر څخه طواف کول ټول حرام دي ،دا ټول د نصاراؤ او کفارو د عبادت طریقې دي [۱].

۲۵- د مړې د ارواح لپاره د قرآنکریم د تلاوت دپاره د قاري اجاره کول بدعت دی په دې عمل باندې نه لوستونکي ته او نه هم مړي ته ثواب شته ځکه چې دا دنیا د کسب د پاره دی [۱].

کفایت المفتي لیکي: مګر که مخکې د څه منلو نه علاوه او د خپله انده څه پیسی ورکړل شي باک نه لري [1].

په څنو ځایونو کې د مړي خښولو په وخت کې آذان لوستل کیږي چې دا کار بدعت او په دین کې هیڅ اصل نلري [1].

**۲۶- تعزیت او مروجې فاتحه خاني**

**د تعزیت (تسلی او غمرازی ) تعریف:**

د مړي قریبانو ته د صبر تلقین کولو ،ډاډ اوخواخوږي کلمات ویلو، د همدردۍ اوغمشریکی اظهارولو د هغوی غم او فکر غلطولو او د مړي په حق کې بخښنی دعا کولو ته تعزیت وایي.

**د تعزیت حکم :**

تعزیت کول سنت دي او ستر فضیلت دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : مَنْ عَزَّى مُصَابًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ» [2] (چا چې د مصیبت واله تعزیت وکړ د هغه لپاره د مصیبت واله په شان ثواب وي).

**د تغزیت موده او طریقه :**

د جمهورو فقهاوو په نزد د تغریت موده د مرګ نه شروع تر دریو ورځو پورې او د دریو ورځو وروسته مکروه ده ، البته د غایبو او مسافرو د پاره د دریو ورځو قید نشته .

---

[1] - فتاوی دار العلوم دیوبند ۳۷- ۵۲ ص ، کفایت المفتي جلد اول ، فتاوی البلد الحرام ص ۲۲۲ .

[2] - رواه الترمذي و ابن ماجه .

دليل دا حديث شريف دى : « لا يَحِلُّ لامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَاليَوْمِ الآخِرِ أنْ تُحِدَّ على مَيِّتٍ فَوقَ ثَلاَثٍ، إلا علَى زَوْجٍ أرْبَعَةَ أشْهُرٍ وَعَشْرًا »[1].

ژباړه: كومه ښځه چې پر الله او ورځ د آخرت ايمان لري هغه لره جايز نه ده چې د دريو ورځو زيات خپل سينګار ترک کړي مګر د خاوند په مرينه باندې څلور مياشتې او لس ورځې.

او ځنې فقهاوو وايي څو پورې چې اهل ميت تعزيې او غمرازۍ ته ضرورت لري تر هغه وخته پورې دې وشي تر څو د هغوى غم سپک شي ځکه چې د غمرازي مقصد همدا دى .

همدارنګه مستحبه ده چې د مړي کور ته درى ورځې خوراک وليګل شي .

لقوله نبي صلى اللّه عليه وسلم: « صْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا ، فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ ».

د تسليت د ورکولو د پاره څه خاص الفاظ نشته بلکې هر کس د خپل حال سره مناسب تسليت ورکولاى شي ، خو مستحبه دا ده چې مصيبت واله ته وويل شي : الله تعالى دې ستا مړي ته بخښنه وکړي ، الله تعالى د هغه ګناهونه و بخښي او الله تعالى خپل رحمت ور باندې نازل کړي ، الله پاک دې تاسې ته په مصيبت باندې د صبر کولو توان درکړي .. او داسې نور[2].

---

[1]- متفق عليه .

[2] – جاء في فقه على المذاهب الاربعة: التعزيه * التعزيه لصاحب المصيبة مندوبة، ووقتها من حين الموت إلى ثلاثة أيام، وتكره بعد ذلك، إلا إذا كان المعزّي أو المعزَّى غائباً، فإنها لا تكره حينئذ بعد ثلاثة أيام؛ وليس

**د تعزيت حکمت :**

۱- د مصبت واله د زړه تسل او هغه ته تسلي ورکول .

۲- هغه ته په صبر باندې حکم کول چې د الله تعالی په قضاء باندې رضاء د ايمان اصل دی.

۳- د حرامو امورو څخه منع کول لکه : په زوره زوره ژړا او نارې وهل ، د جامو څيرول او د ويښتانو شکول .

۴- د مړي د اهل لپاره دعا کول چې الله تعالی دې تاسې ته ددغه مصيبت اجر درکړي .

۵- مړي لره دعا کول ځکه چې هغه نوي له دنيا څخه د آخرت په لوري انتقال شوی په دغه وخت کې هغه ته دعا کول خاص اهميت لري .

**د تعزيت ځای :**

دا چې په جومات کې د تعزيت لپاره کيناستل جايز او که نه ؟ په دې اړه د فقهاء کرامو تر منځ اختلاف نظر دی ځنې فقهاء وايي د تعزيت لپاره تر دريو ورځو پورې جلوس باک نلري مګر په جومات ، د کور دروازې او قبر سره مکروه دی .

و فی الدر المختار:

---

للتعزيه صيغة خاصة؛ بل يعزي كل واحد بما يناسب حاله، وهذا متفق عليه إلا عند الحنفية، فانظر مذهبهم تحت الخط (الحنفية قالوا: يستحب أن يقال للمصاب: "غفر الله تعالى لميتك. وتجاوز عنه وتعمده برحمتك، ورزقتك الصبر على مصيبته، وآجرك على موته، وأحسن صيغة في هذا الباب صيغة رسول الله صلى الله عليه وسلم "إن لله ما أخذ؛ وله ما أعطى، وكل شيء عنده بأجل مسمى" فيحسن أن يضيفها إلى ما ذكر)، والأولى أن تكون التعزيه بعد الدفن .

« و لا بأس...بالجلوس لها في غير مَسْجد ثلاثة أَيّام، وأولها أَفْضَل. وتُكْره بَعْدها إلاَّ لغائب. وتُكْره التعزية ثانياً، وعند القَبْر، وعند باب الدَّار ».

و في البحر الرائق : والتعزية في اليوم الأول أفضل والجلوس في المسجد ثلاثة أيام للتعزية مكروه[1].

او ځنې فقهاء وايي په جومات کې باک نلري .

فتاوى هنديه وايي : د اهل ميت لپاره په کور يا جومات کې تر دريو ورځو پورې کيناستل چې خلک د غمرازۍ لپاره ورته راځي باک نلري او کور په دروازه کې تعزيت مکروه دی .

وَلَا بَأْسَ لِأَهْلِ الْمُصِيبَةِ أَنْ يَجْلِسُوا في الْبَيْتِ أو في مَسْجِدٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَالنَّاسُ يَأْتُونَهُمْ وَيُعَزُّونَهُمْ وَيُكْرَهُ الْجُلُوس على بَابِ الدَّارِ[2].

مګر دا جلوس کيناستل به له لاندې منکراتو څخه خالي وي:

١- لهو لعب ، تصويرونه اخيستل او نور منکرات به پکې نه وي.

٢- نياحت (په زوره ژړا) ، جزع داسې چې د مصبت واله غم او مصيبت نور هم زيات کړي .

٣- تعزيت واله خلکو ته به د مصبت څښتن طعام نه برابروي ځکه دا د سنت خلاف کار دی مګر که ګاونديان او اقرباء يې په هغه کې سهم نه اخلي نو د ميلمنو د خدمت په نيت جايز دی.

---

[1]- البحر الرائق ٣٠٣/٢ .

[2]- هنديه ١٦٧/١ .

۴- په تعزیت کې به دومره ځند نه کوي چې په مصیبت واله باندې بوج شي.

د تعزیت لپاره د هغه ټول اقرباء او خپلوان نارینه ، ښځې او ځوانان لپاره برخه اخیستل مستحب دي مګر ځوانه او پیغله به پکې کښون نه کوي خو که محرم ورسره وي باک نلري .

جاء في فتاوى هنديه :وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَعُمَّ بِالتَّعْزِيَةِ جَمِيعَ أَقَارِبِ الْمَيِّتِ الْكِبَارِ وَالصِّغَارِ وَالرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ إلَّا أَنْ يَكُونَ امْرَأَةً شَابَّةً فَلَا يُعَزِّيهَا إلَّا مَحَارِمُهَا.

**په تعزیت کې د قرآن تلاوت څه حکم لري ؟**

د حنفي فقه په پخوانیو کتابونو کې مې په دې اړه څه پیدا نه کړل ، معاصر فقهاء یې په اړه اختلاف نظر لري :

لومړی قول : په عزاء یا تعزیت کې د قرآن تلاوت او د فاتحې ختم او د هغه ایصاب ثواب رسول الله صلى الله عليه وسلم ، صحابه کرامو او نورو مؤمنانو ته کوم شرعي اصل نلري او په دور نبوت او دور خلفاء راشدینو کې ددې څه ثبوت نشته.

جاء في مجلة البحوث الاسلامي علماء البلد الحرام :

ليس بمشروع تجمعهم يوما أو ثلاثة أيام على هذه القراءة ، ثم يختمون بالفاتحة على النبي ﷺ كل هذا لا أصل له ، ولكن يأتي المؤمن ويعزيهم ، يدعو لميتهم بالمغفرة ولهم بالصبر والاحتساب والأجر ، ويكفي هذا ، ولو صبوا له قهوة أو طيبوه لا بأس ، أما تجمع خاص في يوم أو يومين أو

ثلاثة أو أكثر فيه قراءة خاصة ، ثم ختم بالفاتحة كل هذا لا أصل له ، ما كان يفعل في عهده ﷺ ولا في عهد أصحابه [1].

دوهم قول :

ځنې فقهاء وايي: كچيرې تول ورته غوږ وي او دا ګمان ونه کړي چې په تعزيت کې د قرآن تلاوت مستحب دی او همدارنګه په لاوسپيکر کې نه وي باک نلري .

لکه د يوې مصري کس د پوښتنې په ځواب د سعودي مفتي عبدالله ابن باز رحمه الله وايي : السنة زيارة أهل الميت لعزائهم، وإذا كان عندهم منكر، يُنكِر ويبين لهم، فيجمع المعزي بين المصلحتين، يعزيهم وينكر عليهم وينصحهم، أما مجرد قراءة القرآن فلا بأس فيها، فإذا اجتمعوا وقرأ واحد منهم القرآن عند اجتماعهم، كقراءة الفاتحة وغيرها، فلا بأس وليس في ذلك منكر، فقد كان النبي ﷺ إذا اجتمع مع أصحابه يقرأ القرآن .فإذا اجتمعوا في مجلسهم للمعزين وقرأ واحد منهم أو بعضهم شيئا من القرآن فهو خير من سكوتهم، أما إذا كان هناك بدع غير هذا، كأن يصنع أهل الميت طعاما للناس، يعلمون وينصحون لترك ذلك، فعلى المعزي إذا رأى منكرا أن يقوم بالنصح.

[1] - مجلة البحوث الاسلامي جزء رقم ١٤ ص ٢٢٤ .

# حيله اسقاط

فديه او حيله اسقاط څه ته وايي؟:

**فديه :** كه د مړي ځخه څه لمونځونه ، روژې و غيره فوت شوى وي او هغه وصيت كړى وي د مړي د ميراث د ثلث (۳/۱ حصه) څخه د هغه د فدېي ادا كول واجب دي چې هر لمونځ او هرې روژې په بدل كې به نيم صاع غنم يا د هغه قيمت ادا كوي او كه وصيت يې نه وي كړي ادا كول يې مستحب دى.

**حيله اسقاط يا دوره يا دائره :** حيله اسقاط ځنو فقهاؤ د داسې شخص د پاره يوه حيله ګرځولې ده چې د هغه څخه څه لمونځونه ، روژې و غيره فوت شوي وي او په ژوند كې يې د هغه د قضا د پاره فرصت نه وي موندلى ، او د مرګ په وخت كې يې وصيت كړى وي ، خو د ده څخه پاتې شوى مال دومره نه وي چې د هغه له دريمې حصې څخه د هغه د لمونځونو او روژې فديه ادا شي [1].

د مړي څخه چې كوم مال پاتې شي اسلامې شريعت په هغه كې څلور حقوق وضع كړى دي:

اول : د مړي تكفين او تجهيز

دوهم : د مړي د قرضونو ادا كول.

دريم : د مړي د وصيت پر ځاى كول.

څلورم : پاتې مال به د وارثانو په مينځه تقسيمول.

---

[1] - كفايت المفتي ۴ / ۱۷۲ – ردالمختار ۲ / ۷۲.

که د مړي څخه څه لمونځونه ، روژې و غيره فوت شوی وي او هغه وصيت کړی وي د مړي د ميراث د ثلث څخه د هغه د فديې ادا کول واجب دي.

حيله اسقاط اصلاً په دور نبوت ، دور صحابه او خير القرون نه وه او دا وروسته د فقهاؤ لخوا د يوې اجتهادي مسئلې په توګه منځته راغلی ده.

د دغه حيلې د پاره فقهاؤ لاندې شرطونه ذکر کړی دي:

۱ -دغه حيله به لازمي نه ګڼل کيږي ، فرض ، واجب ، سنت به نه ګڼل کيږي.

۲ -که څوک دغه حيله و نه کړي په هغه باندې به ملامتيا نه ويل کيږي.

۳ -په عمومي محضر کې به نه تر سره کيږي.

۴ -د اسقاط مال به فقط پر مسکينانو تقسيميږي ( يا د صدقاتو پر مستحقينو باندې ).

۵ -مړي به وصيت کړی وي او همدارنګه په هغه صورت کې چې د ميراث له دريمې حصې څخه پوره نشي.

۶ -چا چې وصيت نه وي کړي او واريثان يې سرمايدار وي د هغه د پاره د اسقاط حيله جايزه نه ده.

۷ -اسقاط د قومې رواج په شکل ادا نشي تر څو د خلکو له عار او پيغور څخه خلاص شي.

۸ -يوې خاصې ډلې ته لکه ملايان او طالبان ته خاص نشي.

۹ -د هر مړي د پاره لازم و نه بلل شي.

۱۰ -د اسقاط د پيسو سره قرآن و نه ګرځول شي.

نو اوس تاسې ووایئ چې دا شرایط پکې شته ، بلکي یو هم پکې نشته نو ځکه د خرافاتو ، بدعاتو او منکراتو مجموعه ده[1] .

**جواهر الفقه لیکي:**

د اسقاط په اړه خو ځنې خلک داسې فکر کوي چه دا به د لمونځ ،روژی ،زکات او نورو کفاره ده او په دې سره به خلاصی ومومو دا یو جاهیلانه فکر اوخیال دی.

په دې کې خو شک نشته چه فقهاؤ د اسقاط او دور صورتونه ذکر کړي دي لیکن هغوی چه کوم شرطونه ورسره ذکر کړی ،نو اوس خو د هغه شرطونو څه رعایت نشته یوعام رواج ګرځیدلی دی.

بله مسئله دا ده چه بیا دغه د اسقاط پیسی په یوه دوره دری ځله ګرځوي د دوري هر کس ته یې یو ځل ورکوي او بیا ترینه اخلې په همدی شکل یې ګردې په دوره یا دائره تاووي.

حیله اسقاط یا دور ځنی فقهاؤ کرامو د داسې چا لپاره تجویذ کړی ؤ چه د هغه نه څه لمونځونه ،روژی وغیره اتفاقاً نه قصداً فوت شوي وي او د قضایي راوړلو موقع ورته نه وي پیدا شوی او د مرګ په وخت کې یې وصیت کړی وي لیکن د هغه په ترکه یا میراث کې دومره مال نه وي چه د هغه د لمونځو یا روژی فدیه تری ادا شي.

داسې نه چه مال ورڅخه پاتی وي هغه د ده د خپل واریثان تقسیم کړي او ویې خوری لږ کمی پیسی را واخلې چه خلک ووایي دا دی ما خو په ښه

[1] - فتاوی حقانیه ۲/ ۶۱ الي۶۷ .جواهرالفقه .احسن الفتاوی .امدادالاحکام .محمود الفتاوی.

شان سره مړی خښ کړ.

او که صدقه وي نو صدقه بیا لاس په لاس ګرځولو ته ضرورت نشته چه یو ځل یې یو مالک شي او بل ځلې بل کس د هغه مالک شي او بل دا چې صدقه د صدقاتو مستحقو خلکو ته ور کول کیږي نه دا چې څوک په جنازه کې شامل وي له یو سره هغوی ته ور وویشل شي.

او که فدیه وي نو فدیه به یوه خاصه اندازه لري چه د قضا شویو لمونځو،روژی ،زکات وغیره له رویه د مړی د وصیت له مخی تاکل کیږی او بیا د مړی د ترکې له دریمی برخی څخه ادا کیږي.

نو د دور چې کوم مروج صورت دی یو بېهوده عمل دی چې نه یې مړي ته ثواب رسیږي او نه یې کفاره او فدیه ادا کیږي او ددې کار انجامونکی ګناهګار کرځي.

علامه ابن عابدین الشامی رحمه الله په دې باره کې یو رساله په نوم د : «منحة الجلیل فی اسقاط ما فی الذمة من قلیل و کثیر» لیکلې ده او په هغه کې یې داسې لیکلي دي : « و یجب الاحتراز من ان یدیرها اجنبی الا بوکاله کما ذکرنا أو ان یکون الوصی أو الوارث کما علمت. و یجب الاءحتراز من أن یلاحظ الوصی عند دفع الصرة للفقیر الهزل أو الحیلة، بل یجب أن یدفعها عازما على تملیکها منه حقیقة لا تحیلا ملاحظا أن الفقیر اذا أبى عن هبتها الى الوصی کان له ذلك و لا یجبر على الهبة»[١].

[١] - منحة الجلیل(مجموعه رسایل ابن عابدین ، جواهر الفقة ٢٨٨/١ .

**كفايت المفتي ليكي**

: مروج حليه اسقاط او دائره لكه څنګه چې اوس په خلكو كې رواج لري واجب الترک ده او د يوه سره د خرافاتو مجموعه ده [(١)].

**د مړي د ايصال لپاره خيراتونه او صدقات**

مړو ته د مالي صدقاتو او خيراتونو ايصال ثواب د جمهورو فقهاوو په نزد جايز او كار د خير حتى ځنې فقهاء د هر ډول عبادت ايصال ثواب جايز بللى دى ، وقال العلامة البدر العيني في شرحه على كنز الدقائق ما نصه: يصل إلى الميت جميع أنواع البر من صلاة أو صوم أو حج أو صدقة أو ذكر أو غير ذلك.

ايصال ثواب روح د مړي ته كار د خير او موجب د اجر دى مګر د ورځې ،نيټې ،دريمه ،څلويښتمه ،كال اوغيره مقررول نه دي په كار ځكه چې دا كار په اسلام كې هيڅ اصل نلري[(٢)].

د مړي د دفن او تعزيه پر مهال سنت دا ده چې د مړي كورنۍ او اهل ته د هغه ګاونډيانو او خپلوانو لخوا ډوډۍ برابره شي ، په دليل د دغه حديث شريف « اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا ، فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ ) رواه الترمذي (٩٩٨) ، وحسنه ، وأبو داود (٣١٣٢ (، وابن ماجه (١٦١٠) .

---

[(١)] - كفايت المفتي ١٦٧/٤ .

[(3)] – فتاوى اللجنة الدائمة ٣٧٨/٨ .

[(4)] – فتاوى دارالعلوم ديوبند ج١صفحه ٤٧

مګر د مړي د کورنۍ لخوا خلکو ته د طعام برابرول مکروه او بدعت دی ، ابن همام په فتح القدير ليکي : وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ مِنْ الطَّعَامِ مِنْ أَهْلِ الْمَيِّتِ ؛ لِأَنَّهُ شُرِعَ فِي السُّرُورِ لَا فِي الشُّرُورِ، وَهِيَ بِدْعَةٌ مُسْتَقْبَحَةٌ ". انتهى من "فتح القدير" (۲/۱٤۲).

او که دا طعام د مړي له ترکې څخه وي په هغه کې يتيمان او يا د ورثه اذن نه وي حرام دی .

مګر کچېرې خپلوان او قريبان له لرې ځايونو څخه راغلي وي ، د قريبانو او ګانديان د وس پورته وي نو بيا هغوی ته د چاروي ذبح کول او ډوډۍ ورکول د ميلمستيا په نيت نه د خيرات او عزاء په نيت ورکول کار د خير او اجر دی او داسې کول باک نلري .

وفي فتاوى اللجنة الدائمة: و أما صنع الطعام من أهل الميت للناس فهو خلاف السنة ، بل هو منكر... إلا إذا نزل بهم ضيف : فلا بأس " انتهى[1].

وقال الشيخ محمد المختار الشنقيطي : " هنا مسألة عمت بها البلوى ، وهي مسألة الضيف إذا نزل على آل الميت ، فإذا كان هناك ضيف ، خاصةً من القرابات : كأبناء عمٍ أو إخوانٍ نزلوا وجاءوا من سفر ونزلوا على الإنسان ، وهم ضيوف لهم حق الضيافة ، فذبح لهم ، لا لأجل الموت ولا صدقةً على الميت ، بل إكراماً للضيف : فلا حرج ؛ لأن هذا منفكٌ عن أصل مسألتنا ، فليس من العزاء ولا هو متعلق بالعزاء ، وإنما هو من باب إكرام للضيف الذي أمر الله به ورسوله ، فيكرم الضيف ولا حرج ".

---

[1] – فتاوى اللجنة الدائمة .

# د اذكارو بدعتونه

١- جماعي (ډله ييز ) ذكر كول څه حكم لري ؟

ځواب : د ذكر ، شرعي علم د زده كړې ، تلاوت او وعظ لپاره جمع كيدل كار د خير دى ، د الله تعالى د رحمت د نزول سبب كرځي.

جناب نبى صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «مَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللَّهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمْ السَّكِينَةُ وَغَشِيَتْهُمْ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمْ الْمَلَائِكَةُ وَذَكَرَهُمْ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ » [١].

ژباړه : كوم خلك چې د الله د ذكر لپاره را جمع شي نو پرښتې په هغوى را تاويږي ، او رحمت هغوى را نغاړي ، د زړه اطمنان او سكينه وربانديې نازليږي ،او الله تعالى هغوى په ملائكو كې يادوي .

قال النووي: يُسْتَحَبُّ الْجُلُوسُ فِي حِلَقِ الذِّكْرِ

وَقَالَ ابْنُ تَيْمِيَّةَ : الاجْتِمَاعُ عَلَى الْقِرَاءَةِ وَالذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ حَسَنٌ إِذَا لَمْ يُتَّخَذْ سُنَّةً رَاتِبَةً وَلا اقْتَرَنَ بِهِ مُنْكَرٌ مِنْ بِدْعَةٍ[٢] .

مګر كه ذكر د يوې ډلې لخوا په يو صوت او آواز وي چې د ځنو عبړ له ځنې نورو سره موافق وي كه چېرې د التزام په توګه وي بدعت دى او د

[١] - رواه مسلم و ابوداود

[٢] – مختصر فتاوى المصريه ص ٨٦ .

هغه نه پرهيز پکار دی ، ځکه چې په شريعت کې د داسې ډله ييز ذکر چې په يو آواز سره وي د استحباب څه ثبوت نشته . نو څوک چې په شرع کې په غير لازم شي باندې التزام لګوي د شک پرته بدعت دی .

ځکه د «تکبير ، تهليل ، تحميد » ډليز ذکر نه قولاً ، نه فعلاً او نه هم تقريراً له رسول الله صلى الله وسلم څخه ثابت شوی او همدارنګه دا ډول ذکر څخه صحابه کرامو انکار کړی لکه: د ابن مسعود ﷺ مشهوره واقعه ده چې :

ابن مسعود ﷺ چې کله په کوفه کې وو يو کس ورته وويل : دلته يوه ډله په جومات کې د ماښام وروسته کيني ، داسې تکبير او دارنګه حمد او تحميد وايي ، ابن مسعود ﷺ ورته وويل : کله چې هغوی کيناسل ماته خبر راکړ ، د خبر وروسته ابن مسعود ﷺ ورغلی او ورته وويل :

«وَاللهِ الَّذِي لَا إِلَهَ غَيْرُهُ لَقَدْ جِئْتُمْ بِبِدْعَةٍ ظُلْمًا، أَوْ لَقَدْ فَضَلْتُمْ أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِلْمًا . " فَقَالَ مِعْضَدٌ: وَاللهِ مَا جِئْنَا بِبِدْعَةٍ ظُلْمًا، وَلَا فَضَلْنَا أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ عِلْمًا. فَقَالَ عَمْرُو بْنُ عُتْبَةَ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، نَسْتَغْفِرُ اللهَ ، قَالَ: " عَلَيْكُمْ بِالطَّرِيقِ فَالْزَمُوهُ، فَوَاللهِ لَئِنْ فَعَلْتُمْ

لَقَدْ سَبَقْتُمْ سَبْقًا بَعِيدًا، وَلَئِنْ أَخَذْتُمْ يَمِينًا وَشِمَالًا لَتَضِلُّنَّ ضَلَالًا بَعِيدًا » [1].

و جاء في الموسوعة الفقهية: الذِّكْرُ الْجَمَاعِيُّ : وَهُوَ مَا يَنْطِقُ بِهِ الذَّاكِرُونَ الْمُجْتَمِعُونَ بِصَوْتٍ وَاحِدٍ يُوَافِقُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا ، وَقَدْ جَعَلَهُ ،إِذَا الْتُزِمَ بِدْعَةً إِضَافِيَّةً تُجْتَنَبُ ، إِذَا نَدَبَ الشَّرْعُ إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ فَالْتَزَمَ قَوْمٌ الاجْتِمَاعَ عَلَيْهِ عَلَى لِسَانٍ وَاحِدٍ وَصَوْتٍ وَاحِدٍ لَمْ يَكُنْ فِي نَدْبِ الشَّرْعِ مَا يَدُلُّ عَلَى هَذَا التَّخْصِيصِ الْمُلْتَزَمِ ؛ لأَنَّ الْتِزَامَ الأُمُورِ غَيْرِ اللازِمَةِ يُفْهَمُ عَلَى أَنَّهُ تَشْرِيعٌ ، فَلَمْ يَتَنَاوَلْهَا الدَّلِيلُ الْمُسْتَدَلُّ بِهِ ، فَصَارَتْ مِنْ هَذِهِ الْجِهَةِ بِدَعًا مُحْدَثَةً [2].

و قال: امام كاساني في بدائع الصنائع ، عن أبي حنيفة رحمه الله تعالى: أن رفع الصوت بالتكبير بدعة في الأصل، لأنه ذكر. والسنة في الأذكار المخافتة

؛ لقوله تعالى :ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ [3].

**٢- د ذكر او مناجاتو سره د موسيقى د آلاتو ږغول څه حكم لري؟**

ځواب :د موسيقى د آلاتو ږغول حرام صوت شيطان بلل كيږي .

---

(١) – الدارمي ١/ ٦٨،٦٩ و ابونعيم في الحليه ٣٨١/٤ ، تلبيس ابليس لجوزي ، الأمر بالاتباع لسيوطي ص ٨٣.

(٢) - موسوعة الفقهية ٢١ / ٢٥٣

(٣) - بدائع الصنائع ١٩٦/١ .

په حديث شريف کې راغلي : «صوتان ملعونان في الدنيا والآخرة، مِزمَارِ عند نِعمة، ورَنَّةٌ عند مصيبة» [1].

ژباړه: په دنيا او آخرت کې دوه ملعون (واجب لعنت) آوازونه دي، چې: يو د موسيقۍ د آلاتو غږ د سندرو په وخت کې او بل د مصبت په وخت کې آواز دی.

آيا د دغو ملعونو شيطاني وسائل کارول به څنګه په ذکر او عبادت کې جايز وي ؟

فتاوى الهنديه ليکي :زمونږ په زمانه کې د ځنو صوفيانو قوالي ، مناجات له موسيقۍ سره او رقص او نڅا کول حرام دي په هغه کې ګډون او ناستی حرام دی او دا عينې موسيقي او سندرې دي .

السَّمَاعُ وقَوْلُ و رَّقصُ الذى يَفْعَلُهُ المُتَصَوِفَةُ فى زَمانَنا حرامٌ لايَجُوز القَصدُ اِليه والجُلُوسُ عليه وهو الغِناء والمِزامير سواءٌ .

كَذَا فِي التَّتَارْخَانِيَّة قال رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى السَّمَاعُ وَالْقَوْلُ وَالرَّقْصُ الذي يَفْعَلُهُ الْمُتَصَوِّفَةُ فِي زَمَانِنَا حَرَامٌ لَا يَجُوزُ الْقَصْدُ إلَيْهِ وَالْجُلُوسُ عليه وهو وَالْغِنَاءُ وَالْمَزَامِيرُ سَوَاءٌ [2].

هيئت علماء قطر مركز الفتاوى الاسلام ويب دا عمل عظيم بدعت بللى او درالمختار دا قول ذکر کړی :

---

[1] - رواه براز في مسنده، إسناده حسن، السلسلة الصحيحة ٤٢٧ بإسناد حسن ، الترغيب والترهيب المنذري رواته ثقات ٢٦٨/٤ .

[2] - فتاوى هنديه ٣٥١/٥ .

جاء في رد المحتار -من كتب الحنفية : -(قوله: ومن يستحل الرقصُ، قالوا بكفره) المراد به التمايل، والخَفَضَ والرفع بحركات موزونة، كما يفعله بعض من ينتسب إلى التصوف.

و قال **البزازي الحنفي في الفتاوى البزازية:**

"....و غرضُه استماع الدُف و المِزمار و اللعب بالرقص الذي أحدثه أولاً السامري حين أخرج لهم عجلاً جسداً له خوار، وقد نقلَ صاحبُ الهداية (المرغيناني) فيها: أنّ المغنّي للناس، إنما لا يَقْبَل شهادَتَه؛ لأنّه يجمَعُهم على كبيرة، والقرطبي: على أنّ هذا الغناء وضرب القضيب والرقص حرام بالإجماع عند مالك وأبي حنيفة والشافعي وأحمد. ذكر ذلك في مواضعَ من كتابه.

وسيّد الطائفة الشيخ أحمد اليَسوي صرّحَ بحرمته، ورأيتُ فتوى شيخ الإسلام جلال الملّة والدين (الكرماني) أنّ مُستَحلّ هذا الرقص كافرٌ، ولما عُلِمَ أنّ حرمَتَهُ بالإجماع لزم أن يكفِّر مُسْتَحِلَّه. وللشيخ الزمخشري في " كشافه " كلماتٌ فيهم، تقوم بها عليهم الطّامة، ولصاحب " النهاية " و الإمام المحبوبي أيضاً كلام أشدّ من ذلك". انتهى [1].

مفتى كفايت الله دهلوي رحمه الله وايي:

سماع متعارف يعنى قوالى د ډهول ،سيتار ، سورني وغيره سره د شرعي محرماتو څخه دي او د عامو او خاصو لپاره ناجائز دي .

(1)- فتاوى البرازيه ۳۴۹/۴ .

اشعار او نعت خواني د موسیقی له آلاتو سره دا ټول شرعاً منع او بدعت دی «کل بدعة ضلالة »، بدعت ته رواج ورکونکی ،په هغه کې شریک کیدونکی او اوریدونکی ټول فاسیقان دي[1].

۳- د ذکر او عبادت او د هغه د قبول لپاره د اجازت غوښتل او لاس نیوی کول اصل نلری[2].

۴- د ذکر پر مهال د سر او ځان ښورول ، جذباتي کیدل او د لیوني په څیر له خولې څخه ځګونه بادول بدعت دی .

جاء في الموسوعة الفقهية : يَزِيدُ بَعْضُ أَهْلِ الْبِدَعِ عِنْدَ الذِّكْرِ:الضَّرْبَ عَلَى الصُّدُورِ ، وَبَعْضُهُمْ يَضْرِبُ عَلَى رَأْسِهِ ، وَمَا أَشْبَهَ ذَلِكَ مِنَ الْعَمَلِ الْمُضْحِكِ لِلْحَمْقَى ، لِكَوْنِهِ مِنْ أَعْمَالِ الصِّبْيَانِ وَالْمَجَانِينِ ، الْمُبْكِي[3].

۵- د ذکر پر مهال د شیخ او پیر شکل په ذهن کې را وستل چې (رابطة) بلل کیږي بدعت دی .

په دې اړه له فتاوی اسلام ویب څخه پوښتنه شوې : حكم طريقة الذكر المسماة بالرابطة : الرابطة :عندما يجلس الإنسان ليذكر الله عز وجل ثم يدع صورة شيخه جانبًا, ويبدأ ذكر الله بتركيز وخشوع وحضور، وإن استطاع ذكر الله بدون الرابطة فهنيئًا له،فما رآيک و ما حكمها؟

ځواب: فإن الذكر عبادة لله، والعبادة يشترط لقبولها إخلاصها لله ﷻ،

---

[1] - كفايت المفتي: ۲/۹۹

[2]- نا رواه دودونه او بدعتونه ص ۴۶ .

[3]- الموسوعة ج ۲۱ ص ۲۵۵.

وأن تكون موافقة لسنة النبي ﷺ، وكل عبادة محَدثة لم تأت في الشرع فهي مردودة على صاحبها مهما كانت، جاء في الحديث :من أحدث في أمرنا هذا ما ليس منه فهو رد(متفق عليه).

وفي لفظ آخر :من عمل عملًا ليس عليه أمرنا فهو رد. ولم يأت دليل في الشرع على استجلاب العبد الخشوع وحضور القلب بتذكر صورة شيخه، فهو من المحدثات [1].

ژباړه : د رابطې طريقه څه حکم لري ؟ داسې چې انسان د الله تعالى د ذکر لپاره کيني او بيا د شيخ يا پير صورت پخپل ذهن کې راولي او په خشوع او حضور سره ذکر کوي مګر د رابطې پرته هدر او بې ځايه دى پس ددې حکم څه دى او ستاسې نظر څه دى ؟

ځواب : ذکر عبادت دى او د هر عبادت د قبول شرط اخلاص لله او اتباع رسول الله صلى الله عليه وسلم شرط دى ، هر هغه عبادت چې په اړه يې شرعي حکم نه وي مردود دى په دليل د دغه حديث شريف :«چا چې داسې عمل تر سره کړ چې په اړه شرعي حکم نه وي نو هغه عمل مردود او قبول وړ نه دى » .

همدارنګه د ذکر پر مهال د خولې پټول (ربط انضمام) په اړه په فتاوى اسلام ويب کې راغلي :

---

([1]) - فتاوى اسلام ويب رقم ٨٨٥٦.

سوال : ما حكم الانضمام أو الربط، بمعنى استحضار صورة شيخ الطريقة، واستحضار الموت، والغسل، ويوم البعث، وقول: لا إله إلا الله ١٠٠٠ مرة بالقلب، والفم مُغلق ووهب ثواب كل ما أقرأ للرسول عليه الصلاة والسلام، ولشيخ الطريقة.

ځواب : طريقة الذكر المسماة بالربط: فقد بينا أنها مبتدعة، لا أصل لها في الشرع، فلا يجوز التقرب إلى الله بها [1].

ژباړه : د ربط او انضمام حكم څه دى ؟ داسې چې د شيخ صورت ، مرګ ، د مړي غسل او بيا ژوندي كيدل په ذهن كې راولي او بيا (١٠٠٠) ځله «لا اله الا الله» په زړه كې وايي او خوله يې پټه وي او ثواب يې رسول عليه صلاة و السلام او د طريقت پير ته بښي .

ځواب : پورته بيان شوې طريقه چې ربط بلل كيږي بدعت دى په دين كې اصل نلري او په دې طريقه الله تعالى ته نږديدوالى جواز نلري.

٧- درود تاج او نور هغه درودونه چې په غلوَ او شركيات مشتمل وي د هغه ويل او ترويج كول بدعت دى .

جاء في فتاوى الاسلام سوال جواب: دعاء التاج : هو صيغة محدثة مبتدعة في الصلاة على النبي ﷺ تسمى " التاج " ، وهي صيغة منكرة لا يجوز اعتمادها لما تحويه من الشرك والغلو في النبي ﷺ و مما ورد في هذه الصيغة من المخالفات الشرعية:

أولا: وصفهم فيها النبي ﷺ بأنه " دافع البلاء والوباء والقحط والمرض

---

[1]- فتاوى اسلام ويب رقم الفتاوى ٢٩٦٩٥٣ .

والألم " وهذا وصف شركي ؛ فإن الذي يدفع البلاء والوباء ويكشف الضر و يأتي بالخير إنما هو الله وحده ، قال عز وجل :[ وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ].

يعني : درود تاج پر بدعت بنا دی او په دغه درود کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په اړه د غلو او شرک ډک الفاظ کارول شوي ده لکه : د بلاء او وباء او قحط او مرض او درد دفع او پورته کوونکی چې دا شرکي صفت دی ځکه د هر ضرر دفع کوونکی او د خیر را وستونکی یوازې الله تعالی دی، لقوله تعالی :[ وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ]

ژباړه: او که الله تا ته تکلیف دورسوي، نو د هغه (تکلیف) لرې کوونکی له هغه نه سِوا بل هیڅوك نشته او که هغه تا ته خیر دورسوي، نو هغه په هر شي باندې ښه قادر دی.

۸- د ذکر لپاره د پردیو ښځو لاس نیول او د هغه سره په خلوت کې کیناستل بدعت او حرام عمل دی .

۹- داسې ویل چې د ذکر او عبادت په وسیله ذکر کوونکی فناء في الله ګرځي او د الله په ذات کې حلول کوي (نغوذ بالله) .

الحلول :ومعناه :"أن الله تعالى يصطفي أجساماً يحلّ فيها بمعاني الربوبية، فيزيل عنها معاني البشرية، وأن الله تعالى يحلّ بالعارفين من أوليائه وأصفيائه"[1].

---

(1)- معجم مصطلحات الصوفية ص ٨٢ .

۱۰- په دومره اچت آواز ذکر کول چې نورو ته تکليف ورسيږي .
۱۱- له نصوصي اذکارو پرته کوم چې په احاديثو کې يې شمير ذکر شوی دی د هغه پرته د شمير د تعين او وخت الزام لګول بدعت دی.
جاء في المجموع الفتاوى ابن تيميه رحمه الله :"وليس لأحدٍ أنْ يَسُنَّ للنَّاسِ نوعاً من الأذكار والأدعية غير المسنون، ويجعلها عبادةً راتبةً يواظب الناس عليها كما يواظبون على الصلوات الخمس، بل هذا ابتداعُ دينٍ لم يأذن الله به... وأما اتخاذ وردٍ غيرِ شرعيٍّ، واستنانُ ذكرٍ غيرِ شرعيٍّ، فهذا مما يُنهى عنه، ومع هذا ففي الأدعية الشرعية والأذكار الشرعية غايةُ المطالبِ الصحيحةِ ونهايةُ المقاصدِ العليَّة ، ولا يَعدلُ عنها إلى غيرها من الأذكارِ المحدَثة المبتدعةِ إلاّ جاهلٌ أو مفرّطٌ أو متعَدٍّ"[1] .
۱۲- د اذکارو غلط تلفظ:
لومړی دا چې په ذکر مفرد کې د فقهاؤ تر منځ اختلاف لکه : «الله ، الله ، الله» چې ځنې فقهاء يې جايز ګڼي او ځنې وايي جواز نلري ځکه د رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه کرامو څخه د لفظ مفرد د ذکر څه ثبوت نشته .
او ذکر په اسم ضمير او يا غلط لفظ کولو سره جواز نلري ضمير لکه « هو ، هو » او «آه ، آه » او نور .
او غلط تلفظ داسې چې د الله سره د هو يوځای کول لکه ( الله هو ) او يا

[1] - مجموع الفتاوى ۲۲/ ۵۱۰-۵۱۱ .

د الله په لفظ کې د ها د پیښ پر ځای واو ورکول لکه (الله – اللهو ) ویل داسې کول جواز نلري.

جاء في الموسوعة الفقهية : أَنَّ فِي الذِّكْرِ بِالاسْمِ الْمُفْرَدِ ( اللَّهُ ، اللَّهُ ، اللَّهُ ) خِلافًا فِي أَنَّهُ ذِكْرٌ أَمْ لا..

وَقَالَ ابْنُ تَيْمِيَّةَ : الاسْمُ الْمُفْرَدُ مُظْهَرًا أَوْ مُضْمَرًا لَيْسَ بِكَلامٍ تَامٍّ وَلا يَتَعَلَّقُ بِهِ إِيمَانٌ وَلا كُفْرٌ ، وَلا أَمْرٌ ، وَلا نَهْيٌ ، وَلا يُعْطِي الْقَلْبَ ، مَعْرِفَةً مُفِيدَةً ، وَإِنَّمَا يُعْطِيهِ تَصَوُّرًا مُطْلَقًا . وَالذِّكْرُ بِالاسْمِ الْمُضْمَرِ أَبْعَدُ عَنِ السُّنَّة[1] .

افضل ذکر هغه دی کوم چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابت شوی دی لکه : «لا اله الا الله » ، «تکبیر ، تحمید ، تسبیح ، باقیات الصاحیات » او نورو مسونه او مأثور اذکار ، نو ضمیر او ساختګي اذکارو ته څه ضرورت دی ؟

وجاء في "فتاوى اللجنة الدائمة" : " الغالب على ما يسمى بالتصوف الآن العمل بالبدع الشركية ، مع بدع أخرى ، كقول بعضهم : مدد يا سيد ، وندائهم الأقطاب ، وذكرهم الجماعي ، فيما لم يسم الله به نفسه ، مثل : هو هو ، وآه آه ، ومن قرأ كتبهم عرف كثيرا من بدعهم الشركية ، وغيرها من المنكرات " انتهى.

[1]- موسوعة الفقهية ج ٢١ ص ٢٤٦ .

## د اخترونو بدعتونه

۱- د اختر په ورځ هغه کور ته ورتلل په کوم چې په همغه کال کوم کس وفات شوي وي هغوی ته د دعا او فاتحې په نوم ورتلل او غمرازي کول بدعت دی ، د مړي واله کورنی په خرینو کالیو کې ګرځیدل او د غم ښکاره کول جواز نلري.

۲- په اخترونو کې زیارت کول ، ماتم جوړول ، قبرونو ته ګلان ، حلوا او نور شیان ور وړل او یا پر قبر باندې غنم او نور شیان شیندل بدعت ، د قبر زیارت کول هر وخت سنت او د وخت تخصیص لکه : اخترونه او یا د جمعې ورځ بدعت دی .

۳- د اختر د لمانځه وروسته په اجتماعي او ډلیزه توګه په یوه غږ تکبیرونه ویل بدعت ، سنت طریقه داده چې په انفرادي توګه هر کس تکبیرونه وایي.

۴- د اختر د لمانځه وروسته معانقه کول مکروه دي .

۵- اختر په موسیقی ، قمار او نورو لهو لعبو سره لمانځل او د فسق او فساد ځایونو ته تلل حرام دي .

۶- د حیوان د ذبح لپاره اودس کول هیڅ شرعي اصل نلري .

۷- په خوراک ، څښاک او لباس کې اسراف کول .

## د روژې بدعتونه

۱- د ثواب په نیت په پېشلمي کې بیړه او په روژماتي (افطار) کې تأخیر کول د سنتو خلاف عمل دی ځکه په افطار کې بیړه او په پیشلمې کې تأخیر کول سنت دي.

۲- د لومړي اذان پر مهال د خوراک او څښاک څخه پرهیز کول په هغه صورت کې چې وخت موجود وي.

۳- د خولې څخه د لمړې غوځول کله چې آذان واروي .

۴- د صبح صادق څخه د آذان مخکې کول – د احتیاط په نیت .

۵- د روژې پر مهال حیض راتلل او د روژې پوره کول ، حال دا چې کله حیض وربانديې راشي روژه به ماتوي .

۶- د روژې خوړلو په نیت سفر کول .

۷- په ډیره بیړه تراویح کول چې نه قرآئت پکې صحي وي او نه یې هم سکون او اطمنان او بیا په دې افتخار کول چې مونږ په دومره دومره وخت کې تراویحو ختموو .

دا جواز لري چې امام د شرعي اصولو په چوکات کې په قرائت او لمانځه کې تخفیف راولي ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: «مَنْ صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ» [1].

مګر تخفیف دا معنی نه لري لکه زمونږ د ټولنې د ځنو امامانو او قاریانو

[1]- متفق علیه

تراویح چې دومره تیزې او په بیړه وي چې یې نه قرائت صحیح ادا کیږي ، نه رکوع صحیح وي ، نه قومه ، نه جلسه او نه سجده.

په رکوع او سجده کې په سکون سره درې ځله تسبیحات ویل سنت دي. د ټولو ارکانو په سکون او اطمنان ادا کول واجب دي.

رسول الله صلّی اللَّه علیْه وآله وسلَّم یو سړی ولید چې په نا سم ډول او بدون له طمأنیه لمونځ کوي (په لمانځه کې حرکت کول او په بیړه د ارکانو ادا کول ) امر یې ورته وکړ چې لمونځ دې له سره ادا کړه «إرْجِعْ فَصَلِّ فَإنّكَ لَمْ تُصَلِّ» (لمونځ له سره وګرځوه ځکه چې تا لمونځ ونه کړ ) هغې کس درې ځله لمونځ له سره وګرځولو او وروسته یې وویل یا رسول الله صلی الله علیه وسلم قسم په هغه ذات چې ته یې په حق را استولی یې تر دې غوره نشم ادا کولی نو ماته لمونځ وښیه ، بیا هغه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم په لمانځه کې د پوره سکون ، اطمنان او په ښه شان لمونځ کولو بیان وکړ .

٨- په تراویحو کې د ختم لپاره د قاري اجاره کول او هغه ته اجرت ټاکل نا رواه عمل دی .

٩- کله چې امام تکبیر اولی ووایي ، فاتحه او قرآئت شروع کړي نو ځنې کسان ناست وي تر څو رکعت آخر ته ورسیږي دوی پاچې او اقتداء کوي چې دا کار د سنتو مخالفت ، د قرآن بې احترامي او د ختم د ثواب له

لاسه ورکول دي.

۱۰- د تراویحو په ناسته کې درود شریف ویل .

۱۱- د صلاة تسبیح لمونځ په جماعت سره ادا کول .

۱۲- د لیلة قدر په نامه خاص لمونځ کول، د پورته ټول بیان مأخذ [۱] .

## په رمضان المبارک کې خپرې شوې خطاوې

رمضان المبارک د عبادت موسم دی ، د دعا ښنې غوښتلو ، توبې او استغفار موسم دی ، د تقوی د حاصلولو عملي مدرسه ده تر څو خلک په ښو کارونو عادت او له بدو کارونو څخه منع شي.

د هر عمل د قبول لپاره دوه شرطونه دي : اخلاص لله تعالی او متابعت رسول صلی الله علیه وسلم.

او همدارنګه په هر مسلمان باندې د روژې د احکامو زده کړه فرض عین ده لکه د روژې مفسدات ، مکروهات او نور احکام.

ډیر خلک د روژې د احکامو څخه په صحي توګه خبر نه دي نو ځکه د دوی په روژه کې نقصان موجود وي چې ځینې خطاوې او نواقص په لاندې ډول دي:

۱ -د روژې د احکامو نه پیژندل او د هغه په باره کې د سوال او پوښتنې څخه ډه ډه کول ، الله سبحانه وتعالی فرمايي: [ فَاسْأَلُواْ أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنْتُم لاَ تَعْلَمُونَ ] [۲] .

---

[۱] - موسوعة البدعة

[۲]- سوره النحل :۴۳ .

ژباړه: پس پوښتنه کوئ له اهل ذکر (علماؤ او فقهاؤ) نه کچېرې تاسې نه پوهيږئ.

او جناب نبی صلی الله علیه الصلاة والسلام فرمايلي:« من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين »[1].

ژباړه: چا ته چه الله تعالی د خير اراده وکړي نو په دين کښي پوهه ور په برخه کړي.

.٢ -ځيني خلک ددې مبارکې مياشتې استقبال د ذکر ، علم او تلاوت پر ځای په لهو لعبو ، بې ګټې خبرو او کارونو ، ورق بازۍ ، لوبې او نورو سره کوي.

٣ -ځيني داسې وي چې کله د رمضان مياشت راشي توبه وباسي په جماعت سره لمونځ کوي ، تلاوت کوي ، ښه کارونه تر سره کوي او له بدو کارونو څخه پرهيز کوي خو کله چې روژه تيره شي خپله توبه ماته کړي او بيرته خپل مخکني عاداتو ته ګرځي او هر څه ترک کړي ، دوی هغه قوم او ډله ده چې الله تعالی نه پيژني مګر يوازې په رمضان کې ، آيا الله تعالی لره همدا يوه مياشت ده ؟ او آيا ګناهونه يوازې په همدې مياشت کې حرام دي ؟ که هر وخت او هر ځای ، نو د ځان څخه روژه ګل او جمعه ګل مه جوړئ بلکي هر وخت او هر ځای له الله تعالی څخه وېره اختيار کړئ.

۴ -د ځيني خلکو عقيده داسې وي چې رمضان د خوب ، بې کارۍ او تمبلۍ

[1]- رواه البخاري و مسلم .

لپاره د فرصت ښه میاشت ده نو په دغه میاشت کې د عبادت پر ځای خوب او تمبلی ته ښه زور ورکوي او یا خپل وخت په غیبت ، بهتان ، لهو لعبو تیروي چې د رمضان د پاره ستر ضرر او نقصان دی ، د رحمت د نزول پر ځای ځانته د عضب د نزول لاره برابروي.

۵ -ځینې کسان د روژې په داخلېدو خفګان ښکاره کوي او کله چې روژه ووځي دوی خوښي ښکاره کوي تر څو د دوی د شهواتو او حرامو لپاره لاره پرانستل شي ، حال دا چې دغه میاشت د برکت او مغفرت او د دوزخ د اور څخه د خلاصون میاشت ده د هغه چا لپاره چې واجبات پر ځای کوي او له منکراتو څخه ځان ساتي ، او د شهواتو لاره د دوزخ لاره ده.

رسول صلی الله علیه وسلم فرمايلي: «وحُفَّتْ النارُ بالشهوات» (او دوزخ په شهوتونو پوښل شوی دی).

۶ -ځینې کسان چې کله روژه ماته کړي تر ډیره وخته پورې فلم ، سریال ، موسیقي او یا په نورو لهو لعبو مشغول شي تر دې چې نیمه شپه شي بیا پشلمی وکړي او بیا بیده شي او د سهار جماعت او لمونځ ورڅخه قضا شي.

د ماسختن او سهار لمونځ په جماعت سره ادا کول د ټولې شپې د عبادت کولو برابر ثواب لري:

له عثمان بن عفان ﵁ څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایل:

«من صلّى العشاء في جماعة فكأنّما قام نصف الليل، ومن صلّى الصبح في جماعة فكأنّما صلّى الليل كلّه»[1].

ژباړه: څوک چه د نماسختن لمونځ په جَمع ادا کړي داسې دی لکه تر نمې شپې يې چه لمونځونه کړي وي اوڅوک چې د سهار لمونځ په جَمع ادا کړي داسې دی لکه ټوله شپه يې چې په لمونځ کولو سبا کړي وي ( د بيګا او سبا لمونځ په جمع ادا کولو ثواب د ټولې شپې له عبادت سره مساوي دی ).

٧ -د روژې د حسي ماتوونکو څخه پرهيز لکه : خوړل ، څښل او جماع خو د معنوي ماتوونکو څخه پرهيز نه کوي لکه : غيبت ، بهتان ، درواغ ، ښنځل ، بد اخلاقي او نور ، حال دا چې د روژې مقصد دا نه دی چې سړي يوازې له څه خوړلو او څښلو ځان وساتي بلکي د روژې يو ستر مقصد تقوی ده.

رسول ﷺ فرمايلي:«مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالْعَمَلَ بِهِ فَلَيْسَ لِلَّهِ حَاجَةٌ فِي أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وشَرَابَهُ »[2]

ژباړه: کوم سړی چه بد کارونه فضولی خبرې نه پريږدي نو الله تعالی د ده د خوړلو او څښلو پريښودو ته څه ضرورت نشته.

٨ -د تراويح ترک کول ، حال دا چې د تراويح لمونځ لوی فضيلت لري ، تراويح د نبی صلی الله عليه وسلم او خلفاء راشدينو سنت دي ، چې د الله تعالی ته د نږيوالی او د ګناهونو د مغفرت او د فرض لمونځ د نقصان د

---

[1]- مسلم ٦٥٦ .

[2]- رواه البخاري .

پوره کولو وسیله ګرځي.

د ابی هریره نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :«مَنْ قَامَ رمضان ایماناً و احتساباً غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ»[1].

ژباړه : څوک چې د رمضان په میاشت کې د شپې قیام وکړي (د تراویح لمونځ ) د ایمان په تقاضا او د ثواب لپاره نو د هغه آینده ګناهونه بخښل کیږي.

په بل حدیث شریف کې راغلي :«مَنْ قَامَ مَعَ الإِمَامِ حَتَّى يَنْصَرِفَ كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ »[2].

ژباړه : څوک چې د امام سره تر آخره قیام وکړي (تراویح ادا کړي ) د هغه لپاره به د قیام لیل ( د ټولې شپې عبادت) ثواب لیکل کیږي.

۹ -ځینې کسان روژه نیسي او لمونځ نه کوي مګر یوازې په روژه کې لمونځ کوي کله چې روژه تیره شي لمونځ ترک کوي نو هغه ته به روژه او زکات څه فائده ونه رسوي د هغه مثال داسې دی لکه د ستنې پرته د چت درول ،ځکه چې لمونځ د دین ستن ده چې په هغه باندې ټول دین ولاړ دی.

۱۰ -ځینې کسان د ضرورت پرته خارجي هیوادونو ته سفر کوي او د روژې د خوړلو لپاره حیله جوړوي تر څو دی مسافر و شمیرل شي او روژه وخوري ، خو د الله تعالی څخه د مکرانو او حیله جوړولو اعمال پټ نه دي.

۱۱ -ځینې کسان په حرام مال باندې روژه نیسي او افطار کوي لکه : سود

---

[1] - رواه البخاري .

[2] - رواه أهل السنن بسند صحيح.

، رشوت ، غصب او نور چې د داسې کس دعا او صدقه نه قبلیږي او د ځینې فقهاؤ په نزد حج او عمره یې نه قبلیږي.

۱۲ -ځینې کسان پشلمی ترک کوي چې داسې کول د سنتو خلاف دي.

رسول ﷺ فرمايي : « فَصْلُ مَا بَيْنَ صِيَامِنَا وَصِيَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ ، أَكْلَةُ السَّحَرِ » [۱]

ژباړه: زمونږ او د اهل کتاب د روژې په مینځ کې فرق پشلمی دی.

او بل دا چې په پشلمي کې برکت او د بدن قوت وي.

رسول صلى الله عليه وسلم فرمايي : « تَسَحَّرُوا فَإِنَّ فِي السَّحُورِ بَرَكَةً »[۲]

ژباړه: پشلمی کوئ ځکه په پشلمي کې برکت وي.

۱۳ -ځینې کسان په روژه ماتي کې بیړه نه کوي ، حال دا چې په پشلمي کې ځنډ او روژه ماتي کې بیړه کول سنت دي.

په حديث شريف کې راغلي: « أَحبُّ عِبادِي إِلَيَّ أَعجَلُهُم فِطراً» [۳].

ژباړه: د الله تعالى ارشاد دی چې پخپلو بنده ګانو کې ماته هغه بنده خوښ دی چې په روژه ماتي کې بیړه کوي . یعنې چې کله ماښام شي نو بیا وخت نه تیروي.

د بخاري شريف بل حدیث کې راغلي: «لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا عَجَّلُوا الْفِطْرَ »[٤]

---

[۱]- مسلم ۱۰۹۶

[۲]- بخاری ۱۸۲۳

[۳]- الترمذي ۶۹۶

[٤]- بخاری ۱۸۵۶

ژباړه: څو پورې چې زما امت په روژه ماتي کې بیړه کوي نو هغوی به په ښه حال کې وي.

۱۴ -ځینې امامان د دعاء قنوت سره اوږدې دعاوې وایي چې ماثور نه وي په سنتو کې نه وي ثابتې شوې.

۱۵ -ځینې لمونځ کوونکي د امام متابعت نه کوي د امام څخه مخکې رکوع او سجدې ته ځي او یا د امام مخالفت کوي.

چې په دې باره کې په سنتو کې سخت وعید ذکر شوی دی:

۱۶ -ځینې امامان د سنت قرائت څخه خپل قرائت اوږدوي او د سنتو تسبحاتو څخه تسبیح زیاتوي چې دا کار د سنتو خلاف دی.

رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایلي: « فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ فَإِنَّ فِيهِمُ الْمَرِيضَ وَالْكَبِيرَ وَذَا الْحَاجَةِ » [1].

ژباړه: کوم خلک چې له تاسې څخه خلکو ته لمونځ ورکوي باید هغه لمونځ اوږده نه کړئ ځکه چې په لمونځ کوونکو کې زاړه ،کمزوري ،د ضرورت او کار خاوندان او هر ډول خلک موجود وي.

## د زکات او صدقاتو بدعات

۱- صدقه فطر او یا عشر او زکات د امامت په اجرت کې ورکول:

شرح التنویر لیکي: زکات په اجرت کې ورکول جایز نه دي که څه هم د امامت اجرت وي [2].

[1]- رواه البخاري .

[2]- تنویر وشرحه ۴/۲ ، کفایت المفتي ۲۹۴/۴ .

ځکه قرآنکريم د زکات او صدقاتو د مصرف ځايونه تعين کړی دي:
الله سبحانه وتعالى فرمايي :[ إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاء وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللّهِ وَاللّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ][1] .
ژباړه : بيشکه چې ورکړې (زکاتونه ) د فقيرانو او مسکينانو او د زکات ټولولو ادارې د کار کوونکو ، او هغو لپاره چې زړونه خپلول يې اړين دي ، او (مريانو) په آزادولو کې او پوروړو او د الله ( د دين د پياوړتيا ) په لار کې او د مسافرو د پالنې د پاره دي دا د الله لخوا فريضه ده او الله پوه (او) د حکمت څښتن دی.
که امام فقير او د زکات مستحق وي هغه ته د فقير او مستحق په نيت د امامت د اجرت څخه علاوه زکات يا سرسايه ورکول جايز دي.
فقه حنفي ابومختار د مجالس حکيم امت اشرف علي تهانوي په حواله ليکي: په اکثره مناطقو کې امامانو ته د امامت د اجرت په بدل کي عشر يا زکات ورکوي ، يا د تراويح د امامت په بدل کي فديه ورکوي ، په دغه شان نه زکات ادا کيږي او نه هم امام ته دغه مال حلال دی بلکي هغه ته د دغه مال اخيستل حرام دي[2] .
۲- کچيړي د صدقې او خيرات لپاره د جمعې ورځ يا کومه بله ورځ ددې لپاره وټاکل شي چې په دغه ورځ خلک رخصت وي باک نلري مګر په دې

[1] - سوره التوبه :۶۰
[2] - فقه حنفي ابوالمختار ص ۳۶۶ او مجالس حکيم امت اشرف علي تهانوي

نيت سره يو ورځ ټاكل چې نظر نورو ورځو ته پدغه ورځ كې د خيرات او صدقې فضيلت زيات دى بدعت دى .

تخصيص المسلم عبادة بزمان أو مكان معين لم يرد به الشرع ، من غير اعتقاد أن لذلك الزمان أو المكان فضل معين ، وإنما هو لِظَرفٍ يعرض له ، فيحتاج معه إلى هذا التخصيص ، ليس من البدعة في شيء ، ولا بأس به ، فالإحداث في الدين هو الذي قصد فيه المتعبد الإحداث والاختراع بإضافة ذلك إلى الشريعة والدين ، أو هو الذي يكون ذريعة مفضية إفضاء غالبا إلى ذلك ، فحينئذ يقع المسلم في البدعة [1] .

- په نوي كور باندې د ذبحې او خيرات حكم څه دى ؟

مستحبه ده چې كله يو مؤمن باندې د الله تعالى نعمت وشي نو هغه شكر ادا كړي ، شكر په قول سره لكه : الحمدلله او ثناء ويل او يا الله تعالى د نرېوالي كوم عبادت سره ، يا ذبحه كول او دعوت برابرول او د مساكينو لپاره صدقه كول .

جاء في الموسوعة الفقهية : "يستحبّ تجديد الشّكر عند تجدّد النّعم لفظاً بالحمد والثّناء ، ويكون الشّكر على ذلك أيضاً بفعل قربة من القرب ، ومن ذلك أن يذبح ذبيحةً أو يصنع دعوةً ، وقد ذكر الفقهاء الدّعوات الّتي تصنع لما يتجدّد من النّعم ، كالوكيرة الّتي تصنع للمسكن المتجدّد ، والنّقيعة الّتي تصنع لقدوم الغائب" [2] .

---

[1] - قواعد معرفة في البدع ص ١٨-٢٣ .

[2] - الموسوعة الفقهية ٢٦/ ١٨٠-١٨١ .

د شکر په نیت چې د الله په توفیق سره مې دغه کور جوړ او په‌خیر ختم کړ او دا چې الله تعالی د کور څښتن وګرځولم په دې نیت ذبح کول د اقرباء او ګاونډیانو دعوت پاک نلري کار د خیر دی .

مګر په دې نیت د حیوان ذبحه کول چې ددې کور څخه د جنیاتو او بلاوو ضرر دفع شي ، یا که په نوي کور نوي سپرلۍ باندې ذبحه او وینه تویي نشي نو هغه سېره ګڼل د جاهلیت عقیده ده داسې کول حرام دي .

او همداسې د دروازې په وینه سره کول ، د سپرلۍ په وینه سره کول او دا کار مبارک ګڼل د جاهلیت او شرک عقیده ده .

جاء في فتاوى اللجنة الدائمة:

"إذا كانت هذه العادة – أي : الذبح عند عتبة البيت الجديد - من أجل إرضاء الجن وتجنب المآسي والأحداث الكريهة : فهي عادة محرمة ، بل شرك ، وهذا هو الظاهر من تقديم الذبح على النزول بالبيت ، وجعله على العتبة على الخصوص.

وإن كان القصد من الذبح إكرام الجيران الجدد ، والتعرف عليهم ، وشكر الله على ما أنعم به من السكن الجديد ، وإكرام الأقارب والأصدقاء بهذه المناسبة ، وتعريفهم بهذا المسكن : فهذا خير يُحمد عليه فاعله ، لكن ذلك إنما يكون عادة بعد نزول أهل البيت فيه لا قبل ، ولا يكون ذبح الذبيحة أو الذبائح عند عتبة الباب أو مدخل البيت على الخصوص " انتهى.

و الله سبحانه وتعالى اعلم

# د حج بدعات او منكرات

## اول - د احرام څخه مخکې

۱- په حرام مال باندې حج کول .

۲- د صالح ملګري په انتخاب کې بې پروايي کول .

۳- د حج او عمري د مناسکو نه زده کول حال دا چې اوس عصر کې د زده کړې زيات وسائل موجود دي .

۴- د حج په سفر کولو باندې زيات فخر کول .

۵- عمرې او حج ته د ښځې تلل پرته له محرم څخه .

## دوهم - د احرام په حالت کې

۱- د احرام څخه مخکې د نظافت ، طهارت او خوشبويي د استعمال ترک کول حال دا چې دا شيان سنت دي .

۲- کومه ښځه چې حايضه وي او ميقات ته ورسيږي د احرام ترک کول حال دا چې داسې کول منع دي، ښځه به د حيض پر مهال يوازې طواف نه کوي د حج نور مناسک به ادا کوي.

۳- د احرام په حالت کې خپل لاس د احرام له څادر څخه ايستل (اضطباع ) کول حال دا چې اضطباع يوازې د عمرې او قدوم طواف پر مهال سنت وي .

۴- د احرام له ممنوعاتو او مکروهاتو پرهيز نه کول .

## دريم - د طواف په حالت کې :

۱- د حجر اسود نه مخکې د طواف شروع کول .

۲- د حطیم په داخل کې طواف کول .
۳- د حجر اسود او رکن یماني پرته د کعبې دیوالونه مسحه کول او په هغه باندې دسمال و غیره موښل .
۴- په ټولو شوطونو کې رمل (تیز) تلل .
۵- د حجر اسود د مچې کولو لپاره خلکو ته مزاحمت کول .
۶- د هر طواف پر مهال خاصه دعا کول حال دا چې یوازې د رکن یماني او حجراسود تر مینځ دغه دعا (ربنا آتنا في الدنيا حسنة ، وفي الآخرة حسنة ، وقنا عذاب النار) ویل سنت دي.
۷- د طواف پر مهال په ډلیز ډول دعا کول .

**څلورم - په مقام ابراهیم کې**

۱- په مقام ابراهیم کې د دوو رکعتونو څخه زیات لمونځ کول او د خلکو مزاحمت کول .
۲- په مقام ابراهیم کې د لمانځه وروسته د ځنو کسانو کیناسل او دعا کول حال دا چې په دغه وخت کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د دعا ثبوت نشته په سبب ددې چې خلکو ته تکلیف رسیږي .

**پنځم - د سعې په حالت کې :**

۱- د سعی په پیل کې د « إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَآئِرِ اللّهِ» او دعا ویلو « لا إلهَ إلَّا اللهُ وحدَه لا شريكَ له له الملكُ وله الحمدُ وهو على كلِّ شيءٍ قديرٌ » ترک کول او ددې دعا پر ځای نورې دعاګانې ویل .
۲- د شنو چراغونو په مینځ کې د ځنو ښځو تیز تلل حال دا چې دا تلل یوازې د نارینه لپاره سنت دي.

٣- د سعی په هر ګردش کې د خاصې دعا ویل ځکه چې ددې ثبوت نشته .
۴- په اجتماعي او ډلیز شکل دعا کول .
۵- د اضطباع په حالت کې سعی کول .

**شپږم- په حلق او تقصیر**

١- ځنې کسان د ګوتې د بند څخه کم اندازه ویښتان کموي حال دا چې په تقصیر کې به د ګوتې د بند په اندازه ویښتان کټ کیږي که له دې اندازې کم وي خریل یې واجب دي .

**اوم - په عرفات کې**

١- ځنې حجاج د عرفات له حدودو څخه د باندې وي حال دا چې د عرفات حدود په نښه شوي وي چې په دې کار سره د حج ستر رکن له لاسه ورکوي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمایلي : الحج عرفه ( حج همغه د عرفات ورځ ده )

٢- ځنې حجاج کوښښ کوي چې د جبل الرحمه غره ته ځان ورسوي او هلته د غره په ډېرو باندې ځان و موښې داسې کول بدعت دی . د حاجي د پاره په عرفات دریدل کافي دي .

٣- ځنې حجاج د عرفات په ورځ چې د مغفرت او رحمت ورځ ده په خبرو کولو ، قصې کولو او خندا کولو مشغول وي او په دې مهمه ورځ باندې د دعا او مغفرت غوښتلو چانس له لاسه ورکوي .

۴- ځنې حاجیان د دعا په وخت کې خپل مخ د غره خوا ته کوي حال دا چې قبلې ته مخامخ کیدل او دعا کول سنت دي .

۵- ځنې حاجیان د لمر لوېدو څخه مخکې د عرفات له پولو څخه وځي چې داسې کول حرام دي دم وربانديې واجبيږي او که د لمر لویدو مخکې عرفات ته بیرته راشي د دم څخه خلاصیږي .

۶- د څه عذر پرته د عرفې د خطبې او جبل رحمت ترک کول .

**آتم - په مزدلفه کې**

۱- ځنې کسان په مزدلفه کې خوب ترک کوي حال دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هلته بیده شوی دی ، خوب کول او بیا څه حصه د شپې ذکر او دعا کول .

**نهم - د جمرو په ویشتلو کې :**

۱- ځنې کسان د جمرو شګې مینځي حال دا چې د شګو منځل ضرور نه دي.

۲- د نخود له دانو څخه د غټو شګو ټولول .

۳- ځنې کسان دا ګمان کوي چې دوی شیطان ولي حال دا چې دا یوه شعیره (نښه) ده له شعارالله څخه .

۴- د رمی (شګو) ویشتلو پر مهال د خلکو مزاحمت کول .

۵- د رمی پر مهال د تکبیر ترک کول .

۷- د رمی وروسته د دعا ترک کول .

**لسم - عمومي بدعات او منکرات**

١- ځنې کسان په مسجد الحرام کې د جماعت په لمانځه کې غفلت کوي حال دا چې په مسجد الحرام کې یو لمونځ د یولکو لمونځونو ثواب لري .

٢- ځنې کسانو د حج او عمرې پر مهال تصویرونه اخلي ، غیبت کوي ، نورو ته ضرر رسوي او له ګناه او فسق څخه ځان نه ساتي حال دا چې په عمره او حج کې فسق او جنجال کول نشته .

٣- په نبوي جومات کې له جماعت څخه غفلت کول حال دا چې په نبوي جومات کې یو لمونځ د زرو لمونځونو ثواب لري .

۴- د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارک قبر په دیوال او پنجرو مسحه کول ، مچې کول او ځان وربانديې موښل .

۵- د قبر مخې ته ازدحام جوړول .

٧- د درود ویلو پر مهال د غږ اوچتول .

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : لاتجعلوا بیوتکم قبوراً ، و لاتجعلوا قبري عیداً (رواه ابوداود ).

یعني : خپل کورونه قبرونه مه ګرځوئ او زما قبر عید مه جوړوئ .

مطلب دا چې په کورونو کې ذکر ، نوافل او عبادت کوئ قبر یې مه ګرځوئ او زما قبر د نصارا او یهودو په څیر د عبادت ځای مه ګوځوي او د عید څخه مطلب دا دی چې خلک په ټاکلي وخت سره جمع کیږي او زما د قبر څخه خپل عید مه جوړوئ [1].

- جاء في الموسوعة الفقهية : يَقَعُ لِكَثِيرٍ مِنَ النَّاسِ أُمُورٌ مَكْرُوهَةٌ فِي زِيَارَتِهِمْ لِقَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۵- ځنې کسان د مسجد نبوي یا زیارت څخه په شا وځي چې دا عمل بدعت دی .

۶- ځنې کسان د زیارت پر مهال فلمبرداري او تصویرونه اخلي چې دا کار منکر او لویه بې ادبي ده .

## ټولنیز بدعتونه

## د کفارو په اخترونو کې کډون بدعت او ستر عقیدتي خطر

د کفارو د اخترونو څخه یو هم د نصاراؤ اختر دی چې میلاد عیسی یا کریسماس بلل کیږي ، د Christmas کلمه له دوو برخو تشکیل شوې ده Christ په معنې د (المخلص ) چې د مسیح لقب دی او دوهمه برخه یې mas ده چې د فرعوني کلمې نه اخیستل شوې ده چې معنې یې میلاد دی ، کریسماس په معنې د میلاد مسیح چې دغه میلاد د نصاراؤ مذهبي اختر او د خوښۍ ورځ بلل کیږي په دغو ورځو کې د خپلو پوچو او باطلو اعتقادات اظهار او خوښي ښکاره کوي او هغه لمانځي .

نو آیا کوم مسلمان به د هغوی دغه اختر لمانځنې ته تیار وي په داسې شان چې هغوی عقیده لري چې په دغه ورځ باندې العیاذ بالله د الله زوی

---

۱- التَّزَاحُمُ عِنْدَ الزِّيَارَةِ ، وَذَلِكَ أَمْرٌ لا مُوجِبَ لَهُ ، بَلْ هُوَ خِلافُ الأَدَبِ ، لا سِيَّمَا إِذَا أَدَّى إِلَى زِحَامِ النِّسَاءِ فَإِنَّ الأَمْرَ شَدِيدٌ .

۲- رَفْعُ الأَصْوَاتِ بِالصَّلاةِ وَالسَّلامِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ بِالدُّعَاءِ عِنْدَ زِيَارَتِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

۳-التَّمَسُّحُ بِقَبْرِهِ الشَّرِيفِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ بِشُبَّاكِ حُجْرَتِهِ . أَوْ إِلْصَاقُ الظَّهْرِ أَوِ الْبَطْنِ بِجِدَارِ الْقَبْرِ الموسوعة الفقهية ج ۲۴ ص ۸۵ .

پيدا شوى دى حال دا چې مونږ مسلمانان په دې باندې کلکه عقيده لرو چې : {لم يلد ولم يولد * ولم يكن له كفواً أحد}[1] .

نصارا يا مسيحيان خو په تثليث باندې عقيده لري ، پر الله تعالى باندې عقيده لرل او د هغه سره شريک نيول عسى (زوى) اوروح القدوس (جبريل) له هغه سره شريکوي (الغياذ بالله) [2] .

او د ميلاد په اختر کې هغوى د همدغه عقيدې لمانځنه او اظهار کوي .

**نو آيا كوم مسلمان به د هغوى دغه لمانځنې ته تيارشي ؟**

حال دا چې مونږ په دې باندې ايمان لرو چې حضرت عيسى عليه السلام د الله تعالى پيغمبر ؤ .

قرآنكريم د هغوى ګمراهې داسې بيانوي : [يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لاَ تَغْلُواْ فِي دِينِكُمْ وَلاَ تَقُولُواْ عَلَى اللّهِ إِلاَّ الْحَقِّ إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللّهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ فَآمِنُواْ بِاللّهِ وَرُسُلِهِ وَلاَ تَقُولُواْ ثَلاَثَةٌ انتَهُواْ ...][3] .

ژباړه : اى اهل كتابو! پخپل دين کې افراط مه کوئ او الله ته له حق ويلو پرته بل هيڅ خبره مه منسوبه وئ يقيناً چه عسى زوى د مريمى له دې پرته چې د الله رسول او فرمان ؤ نور څه نه ؤ چې الله مريمى ته وليږو چې د الله له لوري يو روح ؤ چه د مريم په رحم کې يې د ماشوم بڼه غوره کړه .

[1] - سوره الاخلاص.

[2] - الموسوعة الميسر ص ٥٠٣.

[3] - سوره النسآء :١٧١

نو تاسې په الله او ټولو پیغمبرانو ایمان راوړی او مه وایی چه خدای دری دي منعه شئ ( له دې باطلو عقائدو ) .

## د نوروز لمانځل

د نوروز لمانځل څه حکم لري خلک په دغه ورځ باندې نوې جامې اغوندې ، خپلوانو لره سوغاتو وړي ، هفت میوه برابروي او دا ورځ د اختر پشان لمانځي آیا د دغه ورځې لمانځل جایز دي ؟

ځواب: د نوروز میله یا اختر د مجوسیانو اختر دی په هغه کې کډون کول او ددې ورځې لمانځل حرام دي.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله مدینې ته هجرت وکړ د مدینې په خلکو کې دوه عیدونه مروج وو چې دوی په هغه کې خوشحالۍ او میلې کولی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : دا دوې ورځې د څه دي ؟ هغوی عرض وکړ : مونږ به د جاهلیت په زمانه کې په دې دوو ورځو کې خوشحالۍ او بازۍ کولې .رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :«إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَبْدَلَكُمْ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا: يَوْمَ الأَضْحَى، وَيَوْمَ الْفِطْرِ»[1]

یعنې : یقیناً الله تعالی تاسې د پاره دا ورځې په غوره ورځو بدلې کړې چې هغه د فطر او قربانۍ اخترونه دي.

[1] - ابؤداود ۱۱۳۴ ، نسائي ۱۵۵۶

يعنې د جاهليت د زماني اخترونه د اسلامي اخترونو (د فطر او قربانى ) اخترونه په تاكلو سره بدل شول ، نوروز د جاهليت په زمانه كې د اور پرستو اختر وو.

همدارنګه رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي : « إِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيدًا وَهَذَا عِيدُنَا »[1] .

يعنې : د هر قوم او ملت لپاره اختر دى او زمونږ دغه اختر دى (كوچنى او لوى اختر ).

په موسوعة الفقهې كې راغلي چې :

د كفارو په اخترونو كې كېدون كول حرام دي ځكه د هغوى په اخترونو كې كېدون كول د هغوى سره مشابهت كول دي چې په دغه وعيد كې راځي « من تشبه بقوم فهو منهم»

د عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت چې هغه وايي : [من مر ببلاد الأعاجم فَصَنَع نيروزهم ومهرجانهم وتَشَبَّه بهم حتى يموت وهو كذلك , حُشِر معهم يوم القيامة . ولأن الأعياد من جملة الشرع والمَنَاهِج والمَنَاسِك التي قال الله سبحانه وتعالى : ( لكل أمة جعلنا منسكًا هم ناسكوه ) كالقبلة والصلاة والصيام ، فلا فرق بين مشاركتهم في العيد وبين مشاركتهم في

[1] - رواه البخاري .

سائر المناهج , فإن الموافقة في جميع العيد موافقة في الكفر , والموافقة في بعض فروعه موافقة في بعض شعب الكفر][1]

**د حرمت او عقيدتي خطروجه څه ده ؟**

١- د کافران صف او ډله زياتول .

٢- د اسلام او مسلمانانو پر وړاندې دريدل ځکه چې کفر د اسلام پر وړاندې يو ملت دی .

٣- د هغوی په دغه کفري عقائدو او شعائرو باندې رضا کيدل .

٤- د هغوی مشابهت کول .

## د مور د ورځې لمانځل څه حکم لري ؟

ځواب :اسلامي شريعت ټول عمر ، هر ورځ او هره شيبه د مور د احترام او شکران پر ځای کولو حکم کړی دی :

الله تعالى فرمايي:[وَوَصَّيْنَا الإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَى وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ] [2].

ژباړه: او مونږ انسان ته د خپل مور او پلار په حق پېژندنې کې ټينګار کړی دی . د هغه مور د کمزورئ له پاسه کمزورئ په حال کې هغه را اخيستی په خپله ګيډه کې يې وساته او دوه کلونه يې په تي ورکولو ولګيدل . ( له

[1] - الموسوعة الفقهية" (٧/١٢)

[2] - سوره لقمان :١٤ .

همدې کبله مونږ هغه ته نصیحت وکړ چې ) زما شکر وکړه او د خپل مور او پلار شکر پر ځای کړه .

او فرمايي : [وَوَصَّيْنَا الإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا] [1].

ژباړه : او انسان ته مو د هغه د پلار او مور سره د ښه چلند په کولو سپارښت وکړ .

لا تَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَاناً ..] [2] .

ژباړه : بې له الله د بل څه عبادت مه کوئ او له مور او پلار سره به ښېګڼه کوئ .

د بخاري اومسلم حديث شريف دی :

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللَّهِ ، مَنْ أَحَقُّ النَّاسِ بِحُسْنِ صَحَابَتِي ؟ قَالَ : أُمُّكَ . قَالَ : ثُمَّ مَنْ ؟ قَالَ : ثُمَّ أُمُّكَ . قَالَ : ثُمَّ مَنْ ؟ قَالَ : ثُمَّ أُمُّكَ . قَالَ : ثُمَّ مَنْ ؟ قَالَ : ثُمَّ أَبُوكَ [3].

ژباړه: ابی هريرة ﷺ وايي : رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يو سړی راغی او ويې ويل : په خلکو کې څوک په ما باندې زيات حقداره دي ؟ و يې

---

[1] - العنكبوت : ٨

[2] - البقرة:٨٣.

[3] - البخاري (٥٥١٤) اومسلم (٤٦٢١).

فرمایل : ستا مور ، وېې ویل بیا څوک ؟ و یې فرمایل : بیا ستا مور ، وېې ویل : بیا څوک ؟ و یې فرمایل : بیا ستا مور ، وېې ویل بیا څوک ؟ و یې فرمایل بیا ستا پلار .

نو واضح شوه چې اسلامي شریعت ټول عمر ، هره ورځ او هره لحظه د مور د احترام کولو حکم کړی دی او مور یې هر وخت تر ټولو زیاته حقداره ګرځولې ده ، نه دا چې یوازې د مور د احترام د پاره فقط په کال کې یو ځل نمایشي یادونه وشي او بس .

د کال یو ځل نمایشي یادونه یا لمانځنه د کفارو تقلید دی ، اسلام مسلمانانو ته د مور د هرې لحظې د احترام او شکر حکم کړی دی .

اسلام پوره او کامل دین دی چې په هره برخه کې پوره پوره لارښوونې لري په دې باره کې د پردیو تقلید ته هیڅ ځای نشته .

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلامَ دِيناً ) [1] .

ژباړه : نن ورځ ما ستاسې لپاره ستاسې دین پوره کړ او پر تاسې مې خپل نعمت تمام کړ او اسلام مې ستاسې لپاره دین غوره کړ .

[1] - المائدة : ٣

په کال کې په یوه ټاکل شوي ورځ د مور لمانځنه بدعت دی چې په اسلام کې هیڅ اصل نه لري د کفارو د عاداتو څخه دی مسلمان ته جایز نه ده چې په هغه کې ګډون وکړي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : «مَن أحدثَ في أمرِنا هذا ما لَيسَ فيهِ فَهُوَ رَدٌّ»[1] .

ژباړه: هر چا چې په امر (دین ) زمونږ کې داسې عمل پیدا کړ چې له هغه نه وي (په دین کې نه وي ) نو مردود دی

او فرمایي:

«إيّاكُم وَ مُحدَثاتِ الأُمورِ؛ فإنَّ كُلَّ مُحدَثَةٍ بِدعَةٌ، و كُلَّ بِدعَةٍ ضَلالَةٌ، وَ كُلَّ ضَلالَةٍ في النّارِ»[2]:

ژباړه: په دین کې د نو پیدا شی نه پرهیز وکړئ چې هر نوی شی بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده او دهرې ګمراهی انجام اور دی .

رسول الله صلی الله علیه وسلم پخوا د خپل امت په اړه دا اندیښنه څرګنده کړي ده چې فرمایي :

---

[1] - رواه البخاری ومسلم .

[2]- ابوداود(۴۶۰۷) ، ترمذي(۲۶۷۶).

لَتَتَّبِعُنَّ سَنَنَ مَن كانَ قَبلَكُم شِبراً شِبراً وَ ذِراعاً بِذِراعٍ؛ حتّي لَو دَخَلُوا جُحرَ ضَبٍّ تَبِعتُمُوهُم. قُلنا: يا رَسُولَ اللهِ. اليَهُودُ وَ النَّصاري؟ قالَ: فَمَن؟!»[1].

ژباړه : حتماً به دوی د هغوی لاره چې مخکې له تاسو ؤ (اهل کتاب ،یهود او نصارا) لویشت په لویشت او ګز په ګز تعقیب کړي تر دې چې که د کربوړې په غار ننوځي دوی به د هغوی څخه پیروي کوئ ، ومې ویل: ای رسول الله صلی الله علیه وسلم : هدف مو یهود او نصار دي ؟ ویې فرمایل نو څوک دي ؟

یعنې مسلمانان به د یهودو او نصاراؤ اخلاق ، طرزالعمل ، عادات او کلتور څخه لویشت په لویشت او کز په کز تقلید وکړي او د هغوی په مثل به ځان جوړوي .

نو مسلمان ته جایزه نه ده چې د کفارو په عاداتو او رسمونو عمل وکړي .

## د ګلیزې یا سالګیرې لمانځل څه حکم لري ؟

د یوې خاصې ورځې لمانځل په اتفاق د فقهاوو عبادت دی هغه ته که هر نوم ورکړل شي د پیدایښت د کلیزې لمانځلو ته په عربي کې « الاحتفال عید المیلاد) وایي .هر هغه لمانځنه او عبادت چې شرعي اصل ونلري بدعت دی .

[1] - رواه البخاري .

فتاوی علماء البلد الحرام لیکي : د قرآن او سنتو شرعي دلایل پدې دلالت کوي چه د زړیدنې د کلیزې لمانځل په دین کې یو نوی پیدا شوی بدعت دی چه په اسلامي شریعت کې هیڅ اصل او بنیاد نه لري او ددې ډول کارونو د دعوت اجابت جایر نه دی ، ځکه ددې ډول دعوت قبلول د بدعت په عمل باندې یو تشویق دی .

الله تعالي فرمايي: [ أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ][1].

ژباړه: آیا دغه خلک د الله پاک سره داسې شریکان نیسي چه د دوی د پاره یې په دین کې داسې طریقې غوره کړې چه الله تعالی د هغې اجازه نه ده کړې .

او فرمايي:[اتَّبِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ وَلا تَتَّبِعُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ قَلِيلا مَا تَذَكَّرُونَ][2] .

ژباړه: (ای خلکو !) د هغه څه نه پیروي وکړئ چې تاسې ته د ستاسو د پالونکي له خوا نازل شوی دي او بې له خپل رب څخه د نورو د دوستانو په توګه پیروي مه کوئ ،لږ نصیحت منئ .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : «خَيرَ الحَديثِ كِتابُ اللهِ، وَ خَيرَ الهَديَ هَديُ مُحَمَّدٍ ﷺ ، وَ شَرَّ الأُمُورِ مُحدَثاتُها، وَ كُلَّ بِدعَةٍ ضَلالَةٌ»[3]

---

[1] - سوره الشوری :۲۱.

[2] - سوره الاعراب: ۳.

[3] - رواه مسلم

ژباړه: غوره حدیث د الله تعالی کتاب دی او غوره لاره او طریقه د محمد صلی الله علیه وسلم لاره او طریقه ده ، بدترین امور نوې مسائل دي او هر بدعت (نوي امور ) گمراهي ده .

د ماشوم د زږیدنې د کلیزې لمانځل بې له دې چې یو بدعت او منکر عمل دی په اسلام کې هیڅ اصل نه لري .

دا عمل د یهودو او نصاوو سره مشابهت دی ځکه هغوی د زږیدنې کلیزه لمانځي او دا د هغوی سره مشابهت دی .«مَن تَشَبَّهَ بِقَومٍ فَهُوَ مِنهُم»[۱]

د مطلب خلاصه : که څوک د زږیدنې کلیزه لمانځي او هغې ته دیني رنګ ورکوي نو دا عمل بدعت شو ، او که د دین جز یې نه ګڼې نو بیا هم خرافات او د کفارو تقلید دی چې له داسې اعمالو څخه ځان ساتل پکار دي[۲].

## د معلم د ورځې لمانځل

سوال : نن سبا په مکاتبو کې د معلم ورځ لمانځل کیږي زده کوونکي معلمینو ته ډول ډول خوراکونه او سوغاتونه ور وړي او ځنې په دې کار باندې زده کوونکي مجبوروي چې دوی به حتماً د دغه ورځې په لمانځنه کې کډون کوي او سوغاتونه به ور وړي که نه نمري یې کموي.

ځواب: په اسلام کې د هغه دینداره متقي معلم چې خلک د خیر طرف ته بولي ستر مقام دی ، الله تعالی ، د هغه ملائکې او نور مخلوق په هغه

---

[۱] - أبوداود (۴۰۳۱) ، الطبراني في الأوسط (۸۳۲۷).

[۲] - فتاوى معاصر علماء البلد الحرام ۲۸۳/۴ .

باندې درود وايي په حديث شريف راغلي «ان الله وملائكته وأهل السموات والأرضين ...... ليصلون على معلم الناس الخير»[1]

اسلامي شريعت ټول عمر ، هره ورځ او هره لحظه زده کوونکو ته د استاذ او معلم د احترام کولو حکم کړی دی.

د کال يو ځل نمايشي يادونه يا لمانځنه هيڅ شرعي اصل نلري بدعت او د کفارو تقليد دی او د کفري ډيموکراسۍ په لاره تلل دي.

دا ځکه بدعت دی چې د معلم احترام کول شرعي حکم او عبادت دی او دا لمانځنه په احترام کې افراط د خاص مناسبت لپاره د خاصې ورځې لمانځنه او احترام بدعت دی هيڅ شرعي اصل نلري.

په دې لمانځنه کې شرکت کول حرام دي ، سوغاتونه ور وړل حرام دي او زده کوونکي په سوغاتو ور وړلو باندې مجبرول حرام او رشوت دی.

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «إيّاكُم وَ مُحدَثاتِ الأُمورِ؛ فإنَّ كُلَّ مُحدَثَةٍ بِدعَةٌ، و كُلَّ بِدعَةٍ ضَلالَةٌ، وَ كُلَّ ضَلالَةٍ في النّارِ » [2].

ژباړه: په دين کې د نو پيدا شی نه پرهيز وکړئ چې هر نوی شی بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده او دهرې ګمراهۍ انجام اور دی.

جاء في فتاوى اللجنة الدائمة (هيئت علماء الحرمين شرفين ):

سوال: في كل عام تأتيني هدايا ، بمناسبة عيد المعلم من بعض الطالبات ، والحقيقة أني لا أدري عن حكمها ، فأرجو إفادتي بارك الله فيكم ؟

---

[1] - رواه الترمذي .

[2] - ابوداود(۴۷۰۷) ، ترمذي(۲۶۷۶).

ج : عيداً للمعلم أو للمعلمة ، هذا لا أصل له بل تعتبر بدعة ، والهدايا لا تقبلها وقولي لهم : لا يصلح هذا ، ولا ينبغي أن يجعل وقد عرف قول الرسول ﷺ : إن كل بدعة ضلالة وإن كل ضلالة في النار.

فالواجب ترك هذه البدع والأعياد الجاهلية ومنها اليوم العالمي للمعلم وفق الله الجميع للعمل بكتابه وسنة نبيه وترك البدع والمحدثات. وبالله التوفيق[1].

ژباړه : سوال : په هر کال کې ځنې زده کوونکي د معلم د ورځ لمانځنې په مناسبت سوغاتونه راوړي ، حقيقت دا دی چې زه ددې کار په حکم نه پوهيږم نو ماته معلومات راکړې بارک الله فيکم .

ځواب : د معلم يا معلمې عيد يا ورځ لمانځنه هيڅ اصل نلري بلکې دا کار بدعت دی ، او هغوی به دا سوغانونه نه قبلوي ، او هغوی ته وايو چې : داسې کول پکار نه دي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دغه وينا ځان پوهول پکار دي چې فرمايي : «إن كل بدعة ضلالة وإن كل ضلالة في النار» (يقيناً چې هر بدعت ګمراهي ده او د هرې ګمراهۍ انجام د دوزخ اور دی ) ، پس د دغه بدعت او جاهلي اخترونو او لمانځلو ترک واجب دی چې له هغو څخه يو هم د معلم جهاني او نړيوالې ورځې لمانځل دي ، الله تعالى دې ټولو ته د هغه په کتاب او د هغه د نبي په سنتو باندې د عمل کولو توفيق راکړي .

و الله سبحانه وتعالى اعلم

[1] - فتاوى اللجنة الدائمة ٣ / ١١٢.

# د محرم د لسم (عاشورا) بدعتونه

## د عاشورا په ورځ روژه نیول ؟

د عاشورا په ورځ روژه نیول سنت ده او دا روژه زیات ثواب لري په حدیث شریف کې راغلی دي چې:«صَومُ یومِ عَاشُوراء یُکَفِّرُ السَّنَةَ التي قَبْلَهُ »[1]

ژباړه : د عاشورا د ورځې روژه نیول د تیر یو کال د ګناهونو کفاره ګرځي.

مستحب ده چې د محرم د نهم ورځ هم روژه ونیول شي تر څو د یهودو سره مخالفت وشي .

د روژې نیولو علت دا دی چې کله پیغمبر صلی الله علیه وسلم مدینې ته هجرت وکړ د مدینې یهودو به د عاشورا په ورځ روژه نیوله او علت یې د موسې علیه سلام نجات له فرعون څخه ؤ نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې مونږ تر دوی نه اولاتره یو مګر دا چې د یهودو سره مخالف وشي د محرم نهم روژه نیول مستحب دي .

## د عاشورا ورځ د کربلا د واقعې سره څه ربط لري ؟

د عاشورا ورځ د امام حسین ﷺ له شهادت سره کوم ربط نه لري دا د الله تعالی تقدیر ؤ چې امام حسین د محرم په لسم شهید شوی دی ، دا

[1] - رواه مسلم : ١١٦٢ .

ورځ د امام حسین د شهادت په خاطر فضیلت نه لري بلکې دا ورځ د اسلام نه مخکې هم وه رسول الله صلی الله علیه وسلم د عاشورا د ورځې فضیلت هغه وخت بیان کړی چې امام حسین ماشوم ؤ.

**د شعیه ګانو د خواراک خوړل څه حکم لري ؟**

نذر یو عبادت دی چې د الله تعالی لخوا څخه مقرر شوی نه وي بلکي خپله بنده یې پر ځای مقرر وي چې نذر کوي داسې چې: زه به روژه ونیسم یا به نفلونه وکړم الله تعالی فرمایي : {يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا}[1].

نذرونه او ذبح کول دواړه عبادت دی چې یواځې د الله تعالی د پاره وي .

د امام په نوم خوراک یا ذبح کول شرک دی او داسې خوراک خوړل حرام دي .

**په عاشورا کې شله پخول څه حکم لري ؟**

بدعت دی هر هغه شی چې د ثواب په نیت تر سره شي او د دین جز وګڼل شي او په هغه شي باندې الله تعالی او پیغمبر صلی الله علیه وسلم حکم نه وي ورکړی بدعت دی .

«مَن أحدثَ في أمرِنا هذا ما لَيسَ فيهِ فَهُوَ رَدٌّ»[2].

---

[1] - سوره الدهر : ۷ .

[2] - رواه البخاری و مسلم .

**د شعیه ګانو روان اعمال په اړه د اسلام حکم څه دی ؟**

شعیه ګان چې کوم اعمال تر سره کوي لکه په کوڅو او لارو کې د شرکي دروازو درول ، د تورو جنډو ځړول ، تر نیمو شپو نعت خاني کول او د ځانونو ټکول زخمي کول دا ټول هغه ګمراه کونکي د اسلامې شریعت خلاف کارونه دي چې په اسلامې شریعت کې هیڅ اصل نه لري دا نني روان باطل کارونه کوم چې شعیه ګان یې په محرم کې تر سره کوي د اهل تشیع په مشهورو مراجع کې لکه کتاب نهجة البلاغه ، منتهی الأمال ، من لا یحضره ،الفقیة ابوجعفر او نورو کې هم باطل بلل شوی دي .

د اهل تشع یو عالم د شعیه ګانو د دغو خرافاتو په اړه په خپل کتاب « التنزیه لأعمال الشبیه » کې لیکلي : ( قمه زنی و برخی دیگر از اعمال رایج در عزاداری امام حسین نه تنها ثوابی ندارد، بلکه از نظر شرع مقدس حرام است .

د شعیه مشهور کتاب اصول کافي د عاشورا د عزاداري اعمال بدعت او خرافات بللي دي او داسې لیکي : (چرا که حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) فرمودند: «اذا ظهرت البدع فی امتی فلیظهر العالم علمه، فمن لم یفعل، فعلیه لعنه الله»؛ هنگامی که بدعت هایی (نوآوری های باطلی) در امتم ظاهر شد، عالم دین باید علمش را اظهار کند و کسی که چنین نکند، لعنت خدا بر او باد. (اصول کافی، ج۱، ص ٥٤).

رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغه چا باندې لعنت ویلې چې د مصیبت په وخت کې په زوره ژړا کوي ،ګریوان او جامې څیروي ویښتان شکوي :«لعن النَّائِحَةُ وَالْمُسْتَمِعَةَ».[1]

عبدالله ابن مسعود روایت کړی چې رسول صلى الله علیه وسلم فرمایي : « لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُودَ , وَشَقَّ الْجُيُوبَ , وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ »[2].

ژباړه: زمونږ د سنتو موافق نه دي هغه څوک چې د مصیبت په وخت کې خپل مخ وهي او ګریوان څیروي او جاهلیت غوښتنې ته بلنه کوي .

په اسلام کې د غم په تغر کیناستل درې ورځې وي هغه هم د اسلامې اصولو په چوکات کې نه ١٤ پیړی هغه هم د داسې خرافاتو په استقبال سره چې په هیڅ مذهب کې جواز نه لري .

مخکې مو وویل چې بدعت تر ګناه بدتره دی ځکه ګناه کونکی خپل ځان مجرم بولي خو بدعت کونکي خپل ځان پر حق بولي نن شعیه ګان شپې رڼې کوي او ټول شپه یې لاوسپکر چالان وي دوی پر اهل سنتو ځان غوره هم بولي او دا ګمان به هم کوي چې ډیر ثوابونه مو یوړل .

ولی بدعت سراسر ګمراهی ده بل څه نه دي :

---

[1] - رواه مسلم .

[2] – عمدة الاحكام حديث نمبر ١٧٥ .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«إيّاكُم وَ مُحدَثاتِ الأُمورِ؛ فإنَّ كُلَّ مُحدَثَةٍ بِدعَةٌ، و كُلَّ بِدعَةٍ ضَلالَةٌ، وَ كُلَّ ضَلالَةٍ فِي النّارِ»[1]:

ژباړه: په دين کې د نو پيدا شی نه پرهيز وکړئ چې هر نوی شی بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده او دهرې ګمراهی انجام اور دی ) همدارنګه فرمايي : «مَن أحدثَ في أمرِنا هذا ما لَيسَ فيهِ فَهُوَ رَدٌّ»[2] .

او پيغمبر صی الله عليه وسلم فرمايي : «إن الله حجب التوبة عن صاحب كل بدعة حتى يدع بدعته»[3] .

الله تعالی تر هغې پورې د هر بدعت کوونکې توبه نه قبلوي تر څو چې هغه ترک نه کړي .

**د ظالم پروړاندې د انقلاب ياد :**

په هغه عصر کې د ظلم په وړاندې مبارزه د هغه عصر د خلکو مسئوليت ؤ چې دا مسئوليت امام حسين ﷺ تر سره کړ په نن عصر کې د ظلم پر وړاندې مبارزه زمونږ مسئوليت دی ، اهل شعيه دې له ځانه سره خپله قضاوت وکړي چې دوی په نن عصر کې په اسلامي امت باندې د نړيوال کفري يرغل پر وړاندې څه کړي دي ؟.

---

[1] - رواه ابؤداود و الترمذي.

[2] .رواه البخاري و مسلم .

[3] - رواه الطبراني .

## د مولود شریف لمانځل

د مود لمانځل په لاندې دلائلو بدعت دی

اول – د مولود لمانځل له جناب رسول الله صلی الله علیه څخه عملاً ، قولاً او تقریراً نه دی ثابت شوی او جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ لپاره قدوه او امام دی ، الله سبحانه وتعالی فرمایي : [وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ ...][1] .

ژباړه : او هغه څه چې رسول یې تاسې درکوئ واخلئ او له هغه څه نه چې تاسې منع کوي ډډه وکړئ او له الله څخه ووېرېږئ.

او الله سبحانه وتعالی فرمایي : [لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ...] [2] .

ژباړه: یقینًا چې تاسو لپاره د الله په رسول کې ډېره ښه بېلګه او اقتدا ده.

او رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«من أحدث في أمرنا هذا ما لیس منه فهو ردّ» [3]

دوهم – د مولود لمانځل له خلفاء راشدینو او صحابه کرامو څخه نه دي ثابت شوي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : علیکم بسنتي و سنة الخلفاء الراشدین المهدین من بعدي [4]

---

[1] - سوره الحشر :٧ .

[2] - الاحزاب : ٢١ .

[3] - رواه البخاری و مسلم .

[4] - رواه أبو داود والترمذي وقال: حديث حسن صحيح.

دریم – د مولود لمانځل اهل بدعت رواج کړی دي چې لومړي رواج کوونکي يې فاطميون ، عبيدون دي کوم چې په شپږم هجري قرن يې رواج کړی او هغه يې په درواغو بی بی فاطمه ﷺ ته منسوب کړی دی، چې هيڅ حقيقت نلري[1]

څلورم – د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم سره محبت د هغه اتباع ده نه دا چې په ټول کال د هغه يوه ورځ مولود لمانځي او بيا د محبت ادعا کوي ، محبت خو د هغه متابعت کول دي ، لقوله سبحانه وتعالى :[ قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللّهُ..] (آل عمران :٣١) .

ژباړه : (ای نبي!) ته ووايه: که چېرې يئ تاسو چې له الله سره مينه کوئ، بيا نو زما اتباع وکړئ.

مفتي اعظم احناف کفايت الله رحمه الله په کفايت المفتي کې ليکي :

د ميلاد نبي د مجالسو مروج شکل چې د شپې قيام کوي نعتونه وايي ، او د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د پيدايښ ياد کوي بدعت دی ځکه داسې مجلس جوړول او دا ډول د شپې قيام نه د صحابو په زمانه کې وو، نه د تابعينو او نه هم د تبع تابعينو په وخت کې ددې هيڅ وجود نه وو او نه هم په شريعت کې ددې څه ثبوت شته «ان عمل المولود بدعة لم يقل

[1]- نور السنة / سعيد بن علي بن وهف القحطاني

و لم يفعله رسول الله صلى الله عليه وسلم و الخلفاء ، و الائمه»كذا في الشرعية ص ۱۶۴ ).[1]

فتاوي دارالعلوم ديوبند ليکي :

ميلاد نبي بدعت دی او هغه خلک چې وايي مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت بيانوو آيا د رسول الله صلى الله عليه وسلم په امت باندې صرف دغه حق دی چې په ټول کال کې د هغه صرف يو ورځ هغه هم نمايشي ذکر يا د درواغو او رښتيا رسالو په بيانولو وشي او بس ، ای افسوس د مسلمانانو فرض خو دا دي چې ټوله ورځ يي رسول الله صلى الله عليه وسلم په ياد وي ځکه مسلمان ته خو ټوله ورځ د قرانکريم او سنتو احکام او ارشادات متوجه دي ، په عباداتو ، معاملاتو ، اخلاقو کې د هغوی صلى الله عليه وسلم ارشادات عملي کول دي[2] .

همدارنګه فتاوي علماء البدالحرام ليکي :

جشن ميلاد بدعت دی ځکه چې په خيرالقرون کې ددې هيڅ ثبوت نشته ځنې علماء وايي دا جشن د لومړي ځل د پاره په څلورم قرن کې د اهل تشيع فاطمي دولت لخوا مينځ ته راغی چې ځنو د دين څخه نا خبرو اهل سنت د هغوی تقليد وکړ او وروسته دغه بدعت په خلکو کې خپور شو .

[1] - كفايت المفتي ۱ / ۱۷۲

[2] - فتاوي دارالعلوم ديوبند ج ۲ ص ۷۷

په اسلامي مسئولینو دا واجب ده چې ددې ډول بدعاتو مخه ونیسي او پرېنږدي چې څوک ددې ډول مجالسو او جشنونو د پاره دعوت کړي او دا د ټولو مسلمانانو وظیفه ده تر څو د بدعت پر وړاندې مبارزه وکړي او هغه څه چې د اسلامې شریعت خلاف دي له مینځه یوسي[1].

و جاء في فتاوى اللجنة الدائمة :

إقامة احتفال بمناسبة مولده ﷺ لا يجوز لكونه بدعة محدثة لم يفعلها رسول الله ﷺ ولا خلفاؤه الراشدون ، ولا غيرهم من العلماء في القرون الثلاثة المفضلة[2].

## په ودونو کې ناروا رواجونه او بدعتونه

۱- ولیمه ( د نکاح لپاره د را جمع شویو خلکو خوراک ) کې به د هغه اهل ، خپلوان ، ګاونډیان او ملګري هغه که غنیان وي یا فقیران شامل وي داسې به نه وي چې یوازې د مالدارو لپاره خاص وي.

نن مونږ وینو چې په په ودونو او خیراتونو کې په سوونو خلک برخه اخلي خو که څو تنه سوالګر او نا بللي فقیران د دروازې خواته راشي نو پر هغوی باندې دروازه تړل کیږي او تړل کیږي .

[1] - فتاوي علماء البدالحرام – مجموع فتاوى و مقالات متنوعة (۸۱/۴).

[2] - فتاوى اللجنة الدائمة " ( ۲ / ۳ ).

د مسلم شریف حدیث دی : شر الطعام طعام الولیمة يُدعى إليها الأغنياء ويترك الفقراء.

(بدترین خوراک د ولیمې هغه خوراک دی چې هغه ته مالداره رابلل کیږي او فقیران پریښودل کیږي ).

اصل دا دی چې د ولیمې خوراک به خاوند ادا کوي ، د خاوند او میرمنې تر منځ مشترک هم جایز دی او جلا جلا هم جایز دی[1]

۲- د نا محرمو او بیګانه ښځو په مینځ کې د زوم درول ، ناوی او زوم یو ځای درول یا هغه پر یوه تخت کښینوي په داسې حال کې چې نا محرمې ښځې هم سره را ټولې وي دا کار شرعاً حرام دی.

۳- ناوی ته د زوم د کور مشر ور وستل تر څو هغه ته بوټ ور پښو کړي یا د هغه پر سر شال اچول ددې د پاره چې بیا د ناوی تابع شي .

۴- د خینې (نکریزو ) رسم په لاندې دلائلو نا روا دی :

---

(١)- جاء في فتاوى الاسلام سوال جواب: إن الإجابة للوليمة واجبة ليس على إطلاقه ، ولكنها الوليمة إن كانت من الزوج : فالإجابة إليها واجبة ، وكذلك لو كانت مشتركة بين الزوج وأهل المرأة فالإجابة إليها واجبة ، لأن الزوج هو المأمور بالوليمة ، لقول النبي ﷺ لعبد الرحمن بن عوف : ( أولم ولو بشاة )، وإذا كانت الوليمة من أهل الزوجة فقط ، والزوج سيعد وليمة إذا ارتحلت الزوجة إليه : فإنه لا يجب إجابة أهل المرأة ، وإنما إجابتهم سنة " انتهى من "فتاوى نور على الدرب."

وعلم من هذا أن الوليمة يجوز أن يشترك فيها الزوج والزوجة ، أو يقوم بها أهل الزوجة ، وكذلك تكاليف النكاح تكون بحسب ما يتفق عليه الطرفان ، وقد يصنع كل منهما وليمة كما هو العرف في بعض البلدان ، وإذا حدث نزاع فيمن تلزمه الوليمة ، فالوليمة على الزوج كما سبق ، وأما تكاليف النكاح الأخرى كجعل الاحتفال في فندق ونحوه فهذه تكون بحسب التراضي .

اول- په نکریزو باندې زینت ښځو ته خاص دی او د نارینه د پاره داسې کول د ښځو سره مشابهت دی [1].

دوهم – په ځنو خلکو کې داسې عقیده ده چې کچېرې د زوم لاس په نکریزو باندې سور نشي نو د اولاد د بې برکتی او یا سحر سبب ګرځي چې دا عقیده لرل شرک او د ایمان بالقدر سره په ټکر کې ده .

دریم – په نکریزو باندې د زوم د لاس رنګول اکثراً د نا محرمو ښځو لخوا تر سره کیږي چې داسې کول جواز نلري .

۵- د زوم یا ناوې لخوا د ګوتې سوغات :

په ځنو خلکو کې رواج دی چې د واده په شپه زوم ناوې ته ګوتې ور په ګوته کوي او په ځنو هیوادونو کې رواج دی چې پدغه ګوتې باندې د میرمنې او خاوند نوم لیکل شوی وي او هغه د نکاح په شپه یو بل ته هدیه کوي دا کار شرعاً څه حکم لري ؟

ځواب : د واده په شپه د ګوتې سوغات او یا ور په ګوته کول د مسلمانانو له عاداتو څخه نه دی بلکي د کافرانو تقلید دی،کچېرې د کافرانو د

---

[1]- جاء في فتاوى الاسلام سوال جواب:

السؤال: في تونس من التقاليد خلال حفل الزواج أن تقام حفلة للرجل يتم فيها وضع الحناء له على أصابع يده اليمنى ، خاصة الإصبع الصغرى . فما حكم ذلك ؟

ځواب : حرم على الرجل أن يختضب بالحناء في مناسبة الزواج أو غير مناسبة الزواج ؛ وذلك لأن الخضاب بالحناء من خصائص النساء ، فإذا فعله الرجل كان متشبها بالمرأة .

تقلید او پیروي په نیت نه وي او د جلب محبت په نیت نه وي باک نلري مګر ترک یې اولی او افضل دی[1] .

۶- د خاوند د اهل ځخه د خلیتي اخیستل څه حکم لري ؟

په ځنو خلکو کې رواج دی چې د مهر او ولور علاوه د خاوند له اهل ځخه د ښځې کورنۍ د خلیتي په نوم د خپلوانو لپاره څو جوړه لباسونه او همدارنګه نور څه غواړي او کچېرې ادا نه کړي د ښځې د واده ممانعت کوي ؟

ځواب : ددې شیانو اخیستل په هر نامه چې وي جواز نلري او رشوت دی.

جاء في الدرمختار : «أخذ اهل المَرأةُ شیئاً عند التسلیم فللزوج أن یسترده لانه رشوة» [2] .

۷- د ناوی موټر ، اوښ یا سورلۍ ته د چرک یا پسه حلالول ، د موټر او سورلی په وینو باندې سره کول [3]

---

(1) - جاء في فتاوى الاسلام ویب:

فقد بینا أن لبس خاتم الزواج لم یکن معروفا عند السلف ولا معمولا به عند المسلمین، بل هو من التقالید الدخیلة على مجتمعات المسلمین، والتي اتبعوا فیها الأمم الكافرة، ولذلك فإن لبسه لا یجوز إذا قصد به التشبه بالكفار واتباع تقالیدهم، وإن سلم من قصد التشبه بالكفار واعتقاد أن له تأثیراً في جلب المودة بین الزوجین ونحو ذلك، فلیس حراما، ولكننا نرى التنزه عنه أولى (مركز الفتاوى اسلام ویب رقم :۱۶۳۴۲۷ .

(۲)- الدرالمختار : ۳۹۷/۲ .

3- اصلاً د نکاح د شکر ادا لپاره همدا ولیمه کفایت کوي ، بیا هم که د الله تعالی د نعمت د شکرانې لپاره کوم حیوان ذبحه شي باک نلري ، مګر که ددې لپاره حیوان ذبحه کوي چې ناوې مبارکه شي ، ضرر دفع شي او د حیوان په وینه باندې سورلي سره کوي دا شرکي عقائد دي واجب ترک دي.

۸- د نکاح د تړلو پر مهال پردی سړی د ناوی له لخوا د پلار نیول او بیا هغه په درواغو د هغې په لکونو مهر مقررول چې یوه روپۍ هم ناوی ته د مهر په توګه نه ورکول کیږي ، او دغه د درواغو پلار پخپله خوښه په داسې حال یو د بل په نوم بخښې چې یوه روپۍ هم په لاس کې نه لري ، دا ټول په اسلامي شریعت پوري ملنډې وهل ، بدعت او د ناوی د حقوقو پیمالول دي .

۹- د بدل نکاح داسې چې یوه ښځه د بلې ښځې بدل ګڼل او د هغوی مهر نه ورکول .

۱۰- په ودونو کې بې ځایه ډزې کول چې له یوې خوا اسراف او بل پلوه خطر دی .

۱۱- د محرم په میاشت کې یا دوو اخترونو په مینځ کې واده منحوس او نا روا ګڼل .

۱۲- د واده د پاره د ځنو میاشتو او یا ورځو غوره او نیکمرغه ګڼل او په ځنو وختونو کې بد کڼل .

۱۳- ناوی نغري یا تنور ته بول ، په ناوی باندې میخ ټکوهل ( تر څو هغه په کور میخ او ثابت قمه وي ) .

۱۴- د ناوی د پاره پخپل پلو پورې ګانې غوټه کول او نور ټول اسرائیلي ،

د اسلام نه مخکې د جاهلیت زماني بودائي او زردشتي کړنې او بدعات دي چې ټول واجب ترک دي[۱] .

۱۵- ناوی زیارت ته ور وستل

دا دود د ځنو آسیایي هیوادو سربیره زمونږ په هیواد کې هم شته چې ناوې کله د پلار له کوره څخه وباسي نو نږدې زیارت ته یې وروڵي لکه: د مزار له روضې څخه طواف ورکوي او یا د غزني ځنې زیارتونو ته یې ددې لپاره بیایي تر څو د هغوی په عقیده ناوې بختور شي دا عمل شرک دی کچېرې د زیارت څخه طواف د احترام او عبادت په نیت وي کفر دی[۲].

۱۶- په ودونو کې د ساز او سرود ، رقاصو او ډمو نڅول ، پر هغوی باندې روپۍ شیندل ، او په دې نا روا عمل خرچ کول ستره ګناه ده په اسلامي شریعت کې تبذیر حرام سخته ګناه ده چې په قرآنکریم کې تبذیر کوونکي د شیطان وروڼه ښودل شوي دي [إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُواْ إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ ] او په دې محفل کې چې دومره ګناه کیږي رقص او موسیقي ، بې حجابي ، تصویرونه اخیستل د دیني واجباتو ترک او نور په دغو ټولو ګناهونه به د خرچ کوونکي او ترتیب کوونکي په غاړه وي[۳].

[۱]- ناروا دودونه او بدعتونه صفحه ۵۸- ۵۹ .

[۲]- ناروا دودونه او بدعتونه ص ۲۶۱.

[۳]- د جنسي فلمونو ، سریالونو او موسیقی حرمت .

۱۷- په ودونو کې فلمبرداري کول.

د نکاح په مجالسو او خصوصاً هوټلونو کې د نارینه او ښځو، ډمانو او اتڼ چیانو تصویرونه او فلمبرداری تر سره کیږي چې دا عمل يې تر ټولو ستر منکر او فحشاء ده ځکه ددې فلمونو څوک ضمانت کولای شي؟ چې نورو خلکو ته به نه رسیږي چې وروسته به دا د یوه فلم په حیث کارول کیږي، د نامحرمو نارینه او ښځو سیل به پکې کیږي، په داسې شان چې یو کس به يې له خپل ناموس نه خبر نه وي خو د ده د ښځې فلمونه به په نورو کورونو کې کتل کیږي.

ددې فلمبرداری او موسیقی لپاره چې هر چا ډمان او عکاسان راوستلي وي څو پورې چې ددې فلم څخه استفاده کیږي ګناه به يې د ده پر غاړه وي.

رسول الله ﷺ فرمایي :« وَمَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنْ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ تَبِعَهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ آثَامِهِمْ شَيْئًا »[1].

ژباړه: او چا چې خلک د یوی ګمراهی طرف ته دعوت کړل نو د دغی ګناه به هومره ګناه وي چې کوم ګناه کونکی د ده د ګمراه کونکی عمل په وجه بې لاری شوي او ګناه کار شوي وي او د دغه خلکو په ګناه کې به هم کوم کمی نه راځی.

او په دې فاحش کار لګول شوی مال تبذیر دی .

[1]- رواه مسلم ۲۶۷۴.

او ځوک چې قصداً دا بې شرمي رواجوي دغو بې شرمۍ ته دعوت کوي او غواړي چې په خلکو عامه شي نو د هغوی لپاره په دنیا او آخرت کې سخت عذاب دی.لقوله سبحانه وتعالی: « إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ » [1].

ژباړه: کوم کسان چه غواړي د مسلمانانو په ډله کې فحشآء خوره کړي شته دغو (کسانو) ته په دنیا او آخرت کې سخت دردوکی عذاب

۱۸- ناوې ته په آرایشګا کې سینګار ورکول .

آرایشګاه د فساد مرکز او د قبیحو افعالو ورکشاپ بلل کیږي آرایشګاه ته د مسلمانې ښځې تلل په لاندې دلائلو جواز نه لري:

✓ په آرایشګاه کې د شریعت خلاف سینګار تر سره کیږي لکه : د ورځو جوړول ، د سر د ویښتانو قیچي کول ، د نیمه بربنډو جامو سینګار ، د سر جالی او داسې نور ........ چې دا ټول حرام دي ، الله تعالی او د هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم په ارایشګاه واله او هغه ښځه چې ارایشګاه ته ورځي لعنت استولی دی:

« لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ ، وَالنَّامِصَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ ، وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ » [2].

ژباړه: الله تعالی لعنت کړی ځوک چه خال وهي او هغه چه د خال وهلو خیال وکړي ،او هغه ځوک چه وروځې نرى جوړوي او هغه چې د وروځو د

[1]- سوره النور :۱۹ .

[2]- رواه البخاري .

نری جوړولو خیال کوي ، او هغه څوک چه د ډول او ښاست لپاره د غاښونو تر منځ فاصلې جوړوي دا هغه کسان دی چه د الله (جل جلا له) په خلقت کې تغیر راولي.

✓ د خپل کور نه بهر بل ځای کې د جامو ایستل او بدلول:

رسول الله ﷺ فرمايي : « أَيُّمَا امْرَأَةٍ وَضَعَتْ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا فَقَدْ هَتَكَتْ سِتْرَ مَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللَّهِ »[1] .

ژباړه: هرې ښځې چې د خاوند د کور نه بغير بل ځای خپلې جامې ويستلې يقيناً هغې د خپل ځان او الله ﷻ تر منځ پرده څيرې کړی ده. ا

✓ په حديث شريف کې راغلي چې زما په امت کې به د قذف ، خسف او شکل بدليدو غذابونه هم مينځته راشی چې ددې وجه به د ساز او

✓ موسيقی ظهور ، د قيانه ښځو او شرابو څښلو ښکاره کيدل وي .
[2]
.

قيانه هغه ښځې دي چې ناوې ګانې جوړوي او په نن عصر کې قيانه همدا آرایشګاوې دي .

[1] - صحيح أخرجه الترمذي وابن ماجه.

[2] - «يكون في أمتي قذف ومسخ وخسف، قيل يا رسول الله: ومتى ذلك؟ قال»: إذا ظهرت المعازف وكثرت القيان وشربت الخمور» (رواه الترمذي في الجامع و ابن ابى الدنيا في ذم الملاهي و، السلسلة الصحيحة ٢٢٠٣).

## د ماشوم د ولادت نا روا دودونه

۱- په ځنو سیمو کې دا رواج دی چې لومړی اولاد باید د پلار په کور کې وي او داسې کول لازم ګڼل او بل ځای یې ولادت منحوس ګڼل نا روا او شرک دی ځکه د نفع او ضرر مالک رب العالمین دی .

۲- په ځنو سیمو کې دا رواج دی چې کله یو ښځه لومړی ځل حامله شي نو د هغه په لمن کې اووه قسمه میوه اچول کیږي او ویشل کیږي چې دا هیڅ اصل نلري ، او په ځنو ځایونو کې رواج دی چې کله کومه ښځه حمل ضایع کړي نو توره یا چاقو ږدې په دې عقیده سره چې نور له مصیبت څخه لرې شوه دا هم شرک او نا روا خرافات دي .

۳- په ځنو ځایونو کې په مړي پسې د خیرات لپاره او یا هم د نوي پیدا شوي ماشوم د سوغاتونو لپاره له کورونو څخه پیسې جمع کیږي او په هغه باندې الزام لګول کیږي که څوک لري او که نه حتماً به په دې کومک کې برخه اخلي .

۴- ښځه به د ولادت څخه وروسته څلویښت ورځې لمونځ نه کوي حال دا چې د نفاس دوره د ښځې په عادت پورې اړه لري چې ځنې ښځې ۱۵ ورځې ، ۲۰ ورځې او یا ۲۵ ورځې وروسته پاکیږي کله چې د نفاس وینه ودریږي نو غسل به کوي او لمونځ به ادا کوي د نفاس زیاته موده څلویښت ورځې ده .

۵- په ځنو سیمو کې د پیدا شوي ماشوم مور نجسه بلل کیږي او هغه په اتاق کې یوازې پریښودل کیږي دا د جاهلیت د زمانې او یهودیانو عمل دی.

۶- په ځنو جاهلانو کې دا رواج دی چې تر پاک والی یا حد اقل شپږو ورځو پورې خاوند د هغه میرمنې ته نه پریښودل کیږي چې له هغه سره کینې دا د جاهلیت د زماني کفري رواج دی .

۷- په ځنو ځایونو کې رواج دی چې د بچي د ولادت شپږمه ورځ په ډول ډول رسوماتو سره لمانځل کیږي .

۸- په ځنو ځایونو کې رواج دی چې باید ښځه دری ځله غسل وکړي حال دا چې د اسلامي شریعت حکم دی چې کله د نفاس ښځه پاکه شي غسل به کوي او همدارنګه د نفاس او حیض پر مهال د غسل کول شرعی ممانعت نلري خو د دري ځله یا څو ځله تعین او الزام بدعت دی .

۹- د ماشوم ختنه (سنت کولو ) ته د خلکو دعوت او ډوډی ورکول د سنتو خلاف کار دی ، یو ځل عثمان بن ابی العاص د ختنې لپاره دعوت شو خو هغه حاضر نشو ، د هغه څخه د علت پوښتنه وشو هغه وویل : د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې نه د ختنې لپاره دعوت کیدو او نه هم ور تللو.

عن الحسن قال دعی عثمان بن ابی العاص الی ختان فابی ان یجیب فقیل له ، فقال : انا کنا لا نأتی الختان علی عهد رسول الله و لا ندعی له [1].

[1]- مسند احمد ج ۴ ص ۲۱۷.

## د لباس او زينت ناروا دودونه او بدعتونه

١- د نارينه لپاره د ابريشم استعمال ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : :«حرم لباس الحرير و الذهب على ذكور امّتى و احل لاناثهم . «
ژباړه: د ابريشمو او سرو زرو استعمال زما د امت په سړيو حرام دى او ښځو لپاره حلال دى.
په اوس عصر كې يو ډول ابريشمي لونګۍ او ځنې نورو جامو كې كارول شوي وي .

٢- د ښځو لپاره د سترګو وريځو د ويښتانو ايستل ، خال وهل ، د مصنوعي باڼو اچول ، د شرعي عذر پرته د مصنوعي ويښتانو اچول حرام دي او په داسې كسان د الله (جل جلا له) لعنت دى:
« لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ ، وَالنَّامِصَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ...» (رواه بخارى).
ژباړه: الله تعالى لعنت كړى څوک چه خال وهي او هغه چه د خال وهلو خيال وكړي،او هغه څوک چه وروځې نرۍ جوړوي او هغه چې د وروځو د نرى جوړولو خيال كوي.
«لَعَنَ رسول الله صلى الله عليه وسلم الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ».
ژباړه: رسول الله صلي الله عليه وسلم لعنت ويلاى دي پر هغه ښځه چې ويښتان له نورو ويښتانو سره پيوند كوي او همدا شان هغه ښځه چې دغه كار كوي.

د لعنت کلیمه د سختې کبیره ګناه د پاره استعمالیږي چې په دغه نا رواه فیشن او سینګار کې ناروا سینګار کوونکي ښځه او آرایشګاه دواړه شامل دي.

۳- د نازک او ګل دار او زینتي حجاب اغوستل حال دا چې حجاب زینت نه بلکي د زینت لپاره پرده ده .

لقوله سبحانه وتعالی :[وَلاَ يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلاَّ مَا ظَهَرَ... ][1] .

ژباړه : او خپل ښایست دې پرته له هغه چې ښکاره دی نه په ډاګه کوي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلاَ تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الاولى] [2].

ژباړه: او پخپلو کورونو کې اوسئ او د تیر جاهلي دور په شان ځانونه مه بربنډوئ.

الله سبحانه وتعالی فرمايي : [وَلاَ يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ][3].

ژباړه: او پښې دې په زوره نه ږدي تر څو یې پټ کړی ښایست ښکاره شي .

کله چې ښځه له جاهلي بې حجابۍ څخه منع کیږي او مؤمنانې ښځې ددې څخه منع کیږي چې خپل بوټونه پر ځمکه نه وهي څو یې پټ کړی زینت ښکاره نشي نو دا خبره په دې باندې دلالت کوي چې ښځه به زینت نه

---

[1]- سوره النور : ۳۱.

[2]- سوره الاحزاب :۳۳ .

[3]- سوره النور :۳۱ .

ښکاره کوي ځکه چې دا د جاهليت تبرج دی ، د ښځې چې دومره لباس له فتنې څخه خوندې وي همدومره افضل او غوره دی [1].

۴- د ښځو لخوا د پطلون او نارينه بوټونو او نورو نارينه شيانو استعمال :

ځکه د پطلون څخه د ښځې د بدن حجم څرګنديږي او بل دا چې د نارينه سره مشابهت دی .

«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ، وَالمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ»[2] .

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم لعنت ويلی دی په هغه نارينه وؤ باندې چې د ښځو مشابهت کوي (يعنې دهغوی په شان شکل جوړوي او دهغوی په شان لباس اغوندي) او په هغو ښځو باندې هم لعنت ويلی چې هغه د نارينه مشابهت اختياروي يعنې دهغوی په شان جامې اغوندې او د هغوی په شان ځان جوړوي.

الفتاوى النسائية ليکي:

وأما لبس المرأة للبنطلون فلا يجوز ولو كانت خالية و لو كانت أمام النساء أو أمام زوجها، إلا في غرفة مغلقة مع زوجها فقط، فأما ما سوى ذلك فلا يجوز فإنه يبين تفاصيل البدن [3] .

يعنې : د ښځې لپاره پطلون اغوښتل جايز نه دي که څه هم يوازې وي که

---

[1]- فتاوى الأمرة صفحه ۹۴ .

[2]- رواه البخاري ۵۸۸۵ .

[3]- النخبة من الفتاوى النسائية صفحه ۳۰ .

هم د ښځو سره وي يا د خاوند پر وړاندې مګر دا چې د خاوند سره په قفل اتاق وي او ددې پرته جواز نلري ځکه چې ددې څخه د بدن حجم څرګنديږي.

۵- د نارينه او ښځو لپاره د نازک ، شفاف او تنګو جامو اغوستل نوي بدعت او حرام عمل دی

جاء في فقه اللباس والزينة :

حرُم على الرجال والنساء لبس اللِّباس الشَّفَّاف الذي يَصِف البَدَن مُبَيِّنًا للعَورة؛ وهذا باتفاق المذاهب الفقهية الأربعة: الحنفية، والمالكية، والشافعية، والحنابلة..

يعنې : د نارينه او ښځو لپاره د شفاف او نازک لباس چې عورت يې ورڅخه ښکاري په اتفاق د څلورو مذاهبو حنفيه ، مالکيه ، شافعيه او حنابله حرام دی .

د ښځو لخوا د نازک او چسپو جامو اغوستل ، د سر ويښتان د اوښ د بوکام پشان جوړل ستره فتنه ده چې په اړه يې سخت وعيد راغلی دی او دغو ښځو ته کاسيات عاريات ويلی شوې دي:

وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ، رُؤُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ . لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا، وَإِنَّ رِيحَهَا لَيُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا »[1] .

ژباړه: (په دوزخ کې دوې ډلی داسې دي چې تر اوسه ما نه دي ليدلی )او

[1]- رواه مسلم :٢١٢٨ .

هغه ډله ښځې دي چې د جامو باوجود بربنډې وي چې خلکو ته به خپل مذموم حرکات ښکاره کوي د هغوی سرونه به د اوښانو د بوکام په شان وي دوی به نه جنت ته داخليږي او نه د جنت خوشبوي له دومره دومره فاصلی څخه مومی.

کاسيات : دا چې نری او تنکي جامې به اغوندې .

مميلات مائلات : دا چې په تګ کې تبرج کوي او يا به د نارينه خواته ميلان کوي يعنې خپل زينت به نارينه ته ښکاره کوي.

۶- د نوکانو اوږد پريښود :

ځينې ښځې خپل نوکان د ځناورو په شان لوی پريږدي چې دا کار د سنتو خلاف د کافر قوم او حيواناتو سره مشابهت دی او همدارنګه په نوکانو باندې داسې رنګ وهي چې د ابو د رسيدلو مخ نيسي چې نه يې غسل او نه هم اودس صحي کيږي.

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«فمنْ رغِب عَنْ سُنَّتِي فَلَيسَ مِنِّى»[1].

يعنې: څوک چې زما د سنتو څخه سرغړونه کوي له ما څخه نه دی.

۷- د ږيري او سر د سپينو ويښتانو په تور رنګ تورول [2]

په حديث شريف کې راغلي :«يَكُونُ قَوْمٌ يَخْضِبُونَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ بِالسَّوَادِ ، كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ ، لَا يَرِيحُونَ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ. »[1]

[1]- رواه البخاري: ۵۰۶۳ و مسلم :۱۴۰۱.

[2]- د تور رنګ استعمال ځنو فقهاوو مکروه او ځنو حرام بللی دی ، د مجاهد لپاره مباح دی او دا اختلاف د دغه حديث شريف [يكون قوم يخضِبون في آخر الزمان بالسواد كحواصل الحمام] په اسنادو کې دی .

يعني : په آخر زمان کې به داسې خلک وي چې دوی به تور رنګ لګوي لکه د کوترو سينې ، هغوی به د جنت بوی هم و نه ويني .

مګر دا تحريم په تور رنګ کې راغلی د تور رنګ څخه پرته سور يا ژيړ رنګ مباح دي په شرط ددې چې د کفارو تشبه پکې نه وي ځکه په يو بل روايت کې راغلي : « غَيِّرُوا هَذَا بشيء ، وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ » [٢] .

٨- په جامه او لباس کې د کافرانو تقليد او مشابهت .

٩- د مود او فيشن پيروي او په لباس کې اسراف کول ، يوه جوړه جامې لا زړې شوي نه وي هغه پريږدي نورې جامې کوي او يا د جامې په اخيستلو له توسط څخه کار نه اخلي اسراف کوي .

په مبسوط کې راغلی : په جامو او لباس کې نه اسراف چې دی وربانديې مشهور شي او نه هم تقتير پکې داسې خرابې چې خلک ګوته ورته ونيسي بلکي د کارونو غوره اوسط دی«وخير الأمور أوسطها» .

"والمراد أن لا يلبس نهاية ما يكون من الحسن والجودة في الثياب على وجه يشار إليه بالأصابع ، أو يلبس نهاية ما يكون من الثياب الخَلِقِ – القديم البالي - على وجه يشار إليه بالأصابع , فإن أحدهما يرجع إلى الإسراف والآخر يرجع إلى التقتير ، وخير الأمور أوسطها " انتهى [(٣)] .

١٠- د شهرت لپاره ډول ډول جامې اغوستل او د ناتوانه او فقيرانو خلكو د زړونو داغول .

---

[١]- رواه ابؤداود و أحمد و النسائي وصححه الألباني .

[٢]- رواه مسلم .

[٣]- المبسوط ٢٦٨/٣٠ .

په حديث شريف راغلي :«مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ فِي الدُّنْيَا أَلْبَسَهُ اللَّهُ ثَوْبَ مَذَلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»[(١)] .

يعنې : څوک چې په دنيا کې د شهرت لباس اغوندې الله تعالى به په قيامت کې د ذلت جامې ور واغندي .

مناوي رحمه الله وايي : د شهرت له جامې څخه مطلب هغه جامې دي چې کبر ، غرر او افتخار ورباندې کوي او د نورو خلکو څخه خپل ځان لوړ ګڼي .

١١- د کور څخه بهر ته وتلو پر مهال د ښځې خوشبويي وهل :

أبو موسى أشعري ﷺ روايت کوي چه رسول الله ﷺ فرمايلي: « إِذَا اسْتَعْطَرَتْ الْمَرْأَةُ فَمَرَّتْ عَلَى الْقَوْمِ لِيَجِدُوا رِيحَهَا فَهِيَ كَذَا وَكَذَا قَالَ قَوْلًا شَدِيدًا »[(٢)].

ژباړه: کله چه ښځه خوشبويي ووهي او د سړيو له ډلې تيريږي تر څو د هغې دغه ښه بوى خلک حس کړي، پس هغه داسې او هغسى ده، ډيره سخته او شديده وينا او په بل لفظ پس هغه زناکاره ده.

١٢- د سر ويښتانو ځنې برخې اوږه پريښودل او ځنې خريل يا کمول ځکه چې ددې څخه منع شوې ده « انْ ابْنِ عُمَرَ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ « نَهَى عَنْ الْقَزَعِ» [٣]

[١]- رواه ابؤداود ٤٠٢٩ ، و النسائي ٤٦٠/٥ و ابن ماجه ٣٦٠٦ .

[٢]- حسن صحيح أخرجه أبو داود والترمذي والنسائي

[٣]- رواه البخاري ٥٩٢١، و مسلم ٢١٢٠ .

ابن عمر ﷺ روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم له قزع څخه منع کړې قزح داسې چې د سر يوه برخه وخريلي او بله پريږدي نو داسې کول مکروه د سنتو خلاف دي مګر که د کافرانو او فساقو سره د تشبهه په نيت وي حرام دي .

قال الشيخ ابن عثيمين رحمه الله : " والقزع مكروه ؛ لأن النبي صلى الله عليه وسلم رأى غلاماً حلق بعض شعره وترك بعضه ، فنهاهم عن ذلك . وقال : (احلقوا كله أو اتركه كله) إلا إذا كان فيه تشبه بالكفار فهو محرم ، لأن التشبه بالكفار محرم ؛ قال النبي ﷺ : ( من تشبه بقوم فهو منهم ( "انتهى .

(ابن عثيمين رحمه الله وايي : قزح مکروه دی ځکه نبی صلى الله عليه وسلم يو ماشوم وليد چې ځنې ويښتان يې خريلي او ځنې پريښي وو نو د هغه څخه منع کړ او ويې فرمايل : يا ټول وخريه او يا ټول پريږده . مګر که په دې د کفارو سره تشبه او مشابهت وي حرام دی ځکه د کفارو سره مشابهت حرام ، نبی صلى الله عليه وسلم فرمايلي : څوک چې کوم قوم سره مشابهت کوي نو هغه د هغوی څخه دی .

۱۳- د هغو عطرو او خوشبوه استعمال کوم چې الکهول او نشه يې مواد لري ، د داسې عطرو استعمال جواز نلري او خمر او نشه يې شيان د جمهورو فقهاوو په نزد نجس دي.

جاء في فقه الامرأة : و هناک من أهل العلم أجاز هذه العطور ، اذا كانت نسبة الكهول فيها قليلة ، أو كانت هذه العطور مذابة بغير مادة الكحول

الاثيلي ، ولكن الأحوط ترک هذه العطور ، خروجاً من الخلاف ، أضف الى هذا أن هناک من البدائل ما يغني عن استخدام مثل هذه العطور .

يعنې : ځنې اهل علم دغو عطرو اجازتورکړی په هغه صورت کې چې د الکهول نسبت کم وي او د الکهولو پرته بلې مادې سره ترکيب شوي وي ، مګر احتياط يې په ترک دی تر څو د اختلاف څخه ووځي ځکه چې ددې بديل نور ډولونه شته .

۱۴- د ځوانانو لپاره په غاړه يا لاس کې د ځنځير اچول :

په غاړه يا لاس کې د ځنځير او يا حلقې اچول لاندې صورتونه لري :

اول صورت : په غاړه يا لاس کې د ځنځير ، يا حلقي يا مريو اچول په دې نيت چې هغه مؤثر بالذات دي يعنې ضرر او بلا دفع کوي نو دا عمل شرک دی.

دوهم صورت: په غاړه يا لاس کې د ځنځير اچول که د کفارو د تقليد په نيت وي لکه : سکان چې په لاس کې ځنځير اچوي او دا د هغوی مذهبي عنعنه ده نو دا کار د کفارو سره مشابهت دی.

په حديث شريف کې راغلي : «من تشبه بقوم فهو منهم »[1]

يعنې : څوک چې د کوم قوم سره ځان مشابه کوي پس له هغوی نه دی له هغوی سره به شميرلی شي.

او که په دې عقيده نه وي د جمال او زينت لپاره وي بيا هم په منع شوي مشابهت کې راځي ځکه دا ډول زينت د ښځې لپاره وي نه د نارينه .

[1]- رواه أحمد و شرح فقه أكبر ملا علي قاري ص : ۴۹۶ .

لا يعتقد فيها هذا الاعتقاد، وإنما يفعلها تشبها، للزينة مثلا والجمال فتدخل في باب التشبه المنهي عنه[١].

دريم صورت: كه مرض د درملني په نيت وي نو دا كار هم جواز نلري ځكه ددې حلقي كارول نه ديني اصل لري او نه هم علمي .

عن عمران بن حصين: أن رسول الله – ﷺ – رأى رجلاً في يده حلقة من صُفْر، فقال: "ما هذه؟" قال: مِن الواهِنة. فقال: «انزعها فإنها لا تزيدك إلا وهْناً، فإنك لو مت وهي عليك ما أفلحت أبداً» [٢].

ژباړه : د عمران بن حصين نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم يو كس وليد چې حلقه يې په لاس كې وه ( داسې حلقه چې په يوه شي احاطه شوې وه) ، ويې فرمايل : دا څه دى ؟ هغه وويل : واهنه مرض دى ( د لاس د مفصل روماتيزم) ، ويې فرمايل : دا لرې كړه ځكه دا نه زياتوي مګر ضعف او مرض ، پس كچيرې ته مړ شي او دا دې په لاس وي نو هيڅكله به كامياب نشي.

[١]- دوكتور سهل عتيبي – الاكاديمية الاسلامية .
[٢]- رواه أحمد ، ابن ماجه و ابن حبان.

# سیاسي بدعتونه

۱- د شرعي سیاست تغیرول په کفري ډیموکراسۍ چې یو خطرناک معاصر بدعت او شرک دی او د مسلمانانو د سیاسی نظام له منځه وړلو لپاره د کفارو لویه حربه ده.

د شرعي قانون پر ځای بل ساختګي قانون چلول بدعت او شرک اکبر دی ځکه د مسلمانانو قانون اسلامي شریعت او آسماني وحی ده (ان حکم الا لله ) .

۲- د اسلامي شوری تحریف د ډیموکراسۍ په پارلمان سره .

د شوری او پارلمان تر منځ فرق :

- ✓ د الشوری لفظ قرآني دی ، حکامو ته د الله تعالی حکم دی چې تاسې به له خپلو ماتحتو سره مشوره کوئ (وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْر).

ډیموکراسي وضعي لفظ دی چې د سیکولرزم سیاسي برخه ده ،لومړی په کال د (۱۷۸۹) په فرانسه کې د دین او مذهب پر خلاف مینځ راغلې چې هدف یې د سیاست څخه د دین حذف کول دي، د خلکو د حکم (وضعې قانون) تحکیم پر خلکو باندې.

- ✓ په الشوری کې عدد معتبر نه دی بلکي هغه رأی د منلو وړ ده چې د شرع موافق وي ، مګر په دیموکراسۍ کې عدد معتبر دی کچیرې د اکثرو رأیې په باطل او ناورا کار ورکړ شي هغه د منلو وړ دي.
- ✓ په شوری کې به هغه کسان شامل وي چې هغوی د شوری شرعي اهلیت ولري ، مګر په ډیموکراسۍ کې اهلیت شرط نه دی.

✓ په شوری کې یوازې په اجتهادي مسائلو کې مشوره او رأی ورکول کیږي د دین په ثابتو احکامو کې هیڅ څوک د مشورې او رأی حق نلري ، مثلاً : د شرابو ، زنا او لواطت حرمت ثابت دی نه پکې څوک د مشورې ورکولو حق لري او نه هم څوک د رأی ورکولو حق لري.

مګر ډیموکراسي چې عصري شرک بلل کیږي ځانته د قانون جوړولو حق ورکوي کولای شي حلال حرام وګرځوي او په حرام باندې د حلال حکم ورکړي.

✓ د شوری منهج او قانون اسلامي شریعت دی، کچیرې د چا رأی او مشوره د شرع خلاف وي د اسلامي اخلاقو خلاف وي هغه لره هیڅ وزن او هیڅ اصل او اعتبار نشته.

مګر په دیموکراسۍ کې دیني منهج ته اعتبار نشته ، مطلق اخلاق وجود نلري، حتی که چیرې د حیوان څخه یو پست او زریل کار باندې اکثریت رأی ورکړي د منلو وړ دی لکه د اشرف مخلوق انسان نکاح د سپي او خره سره ، او یا د نارینه واده له نارینه او د ښځینه له ښځینه سره چې داسې عمل پر حیواناتو کې هم وجود نلري.

۳- سیاسي ګوندونه او حزبونه جوړول حرام او بدعت دی د قرآنکریم او سنتو له احکامو څخه خلاف دی او د اسلامي امت د تضعیف او نفاق ستر عامل دی ، او له اسلامي امت سره لویه جفا او خیانت دی .

ځکه چې مسلمه امت یو امت دی ، لقوله سبحانه وتعالی :[إِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ][1] .

و قال سبحانه وتعالی :[وَأَنَّ هَذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ وَلاَ تَتَّبِعُواْ السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ ذَلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ][2] .

د حزبونو او ډلو جوړولو عواقب په لاندې ډول دي :

- ✓ تعصب حزبي حال دا چې په اسلام کې حزبي ، قومي ، سمتي او لساني تعصب حرام او د جاهليت عمل دی .
- ✓ د هر حزب او ګوند لپاره ځانګړی منهج وي چې پر اعضاوو یې تطبيق لازمي وي او داسې فکر کول چې ټول دين او کاميابي په همدې ګندې منهج کې دی .
- ✓ هر یو حزب ته د خپل حزب او ګوند مشران ، علماء او اشخاص غوره وي او د بل ګوند کم ګنل کيږي حال دا چې د اسلام معيار تقوی ده « إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ» .
- ✓ د افکارو ميزان د حزب منهج او اجنډا وي حال دا چې په اسلام کې د افکارو او مناهجو ميزان کتاب الله او سنت دي ، لقوله سبحانه وتعالی : [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن

---

(١)- سوره الانبياء :٩٢ .

(٢)- سوره الانعام :١٥٣ .

تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ][1] .

✓ بلاخره د حزب او ګوندونو جوړولو نتجه تفرق ، اختلاف ، عداوت او د امت او مسلمانانو ټوټې کول دي.

۴- په حکومتي ادارو او دفترونو کې د ښځو او نارینه اختلاط معاصر بدعت او عظیم فساد دی .

۵- د ریاست لپاره پخپله خپل ځان ټاکل بدعت او ناروا دی .

۶- د سیاسي نظام څخه د الولاء او البراء حذف:

د مسلمانانو د زیاتو تش په نوم سیاسي نظامونو څخه د «الولاء و البراء» عقیدتي اصل په کلي ډول له منځه تللی دی ، د سیاسي اهدافو لپاره د مسلمان پر ځای له کافر سره دوستي او د کفر د کفري عقائدو او کفري اهدافو د دوښمنۍ پر ځای د مسلمانانو له اسلامي اهدافو سره دوښمني کوي .

او د سیاسي رقابت په وجه له کفارو سره دوستي کول او په خپل مسلمان ورور باندې هغه ته ترجیح ورکول بدعت ، اشد موالات ، سخته ګناه او د قرآن او سنتو له صریح نصوصو څخه خلاف ورزي ده .

۷- د پیسو او ننواتي په وسیله د خلکو ملاتړ تر لاسه کول او خپل ځان

---

۱ - سوره النسآء :۹۵ .

قدرت او رياست ته رسول بدعت دی.

۸- صرف د سياسي اختلاف له امله له خپل مسلمان ورور سره دوښمني کول او له هغه سره د اخوت اړيکي شکول بدعت او حرام عمل دی .

۹- د اسلامي ورځو (جمعه او اخترونو ) پرته د نورو ورځو رخصتي کول بغير له کوم شرعي عذر څخه بدعت دی .

۱۰- د مور ورځ ، د کارګرانو ورځ ، ربيع الاول ، د شهيدانو ورځ او نوروز لمانځل او په دغه ورځ رخصتي اعلانول او مجلسونه جوړول بدعت دی .

۱۱- د لاس او سر په اشارې سره رسمي سلامي کول بدعت دی له يهودو او نصاراؤ سره تشبيح ده .

۱۲- پر نارينه باندې ښځه د رئيس او وزير په توګه مقررول بدعت او حرام عمل دی .

۱۳- د اسلامي دعوت او وعظ په باره کې په علماوو باندې د حکومت او وزارت لخوا څه مقررول او تاکل بدعت دی .

۱۴- رسم تعظيم کول بدعت دی[1].

۱۵- په حکومتي ادارو او علمي مراکزو کې د نارينه او ښځو مختلط کار اصل دا دی چې د نفقي او کورني احتياجاتو پوره کول د نارينه مسئوليت دی نه د ښځې ، د ښځې نفقه د پلار په کور کې د هغې پلار ، يا نيکه ، ورور

---

([1])- نا رواه دودونه او بدعتونه .

او يا کاکا پر غاړه ده او د خاوند په کور کې د هغې نفقه د هغې په خاوند ، خسر ، زوی باندې واجب ده.

لقوله سبحانه وتعالى :[الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ][1] .

ژباړه: سړي پر ښځو حاکمان دي له دې کبله چې الله پاک ځينې د دوی ته پر ځينو نورو افضليت او غوراوی ورکړی دی او له دې امله چې نارينه ( د ښځو لپاره ) خپله شتمني لګوي.

او فرمايي: [وَعلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ][2] .

ژباړه: په دې صورت کې به د ماشوم پلار په ښه توګه هغوی (مور او ماشوم ) ته په ښه توګه خواړه او جامې ورکوي.

او حضرت جابر ﷺ روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حجة الوداع په خطبه کې وفرمايلې:

«...ولهن عليكم رزقهن وكسوتهن بالمعروف » [3] .

يعنې : او د هغوی (ښځو) پر تاسې باندې دا حق دی چې هغوی ته به په ښه شان نفقه او د استوګنې ځای برابروئ.

بل اصل دا دی چې ښځه به په کور کې اوسيږي د کور چارې به تر سره کوي او نارينه به د باندې چارې تر سره کوي ، ښځه به د ضرورت پرته له

---

[1]- سوره النسآء : ۳۴ .

[2]- البقرة ۲۳۳ .

[3]- رواه المسلم ۱۲۱۸ .

کور څخه نه وځي ، لقوله سبحانه وتعالى : [وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلاَ تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الأُولَى] [1] .

مګر کچېرې ښځه بې سرپرسته شي د نفقې پيدا کولو څوک نلري ، يا داسې چارې وي چې نارينه يې نشي تر سره کولی او د ښځو په موجوديت کې يې هغوی ته کول رواه نه وي لکه : د ښځو درملنه په خاصه توګه نسايي او ولادي څانګه ، د ښځو تدريس ، د ښځو د جامو ګنډل او داسې نور.

**د لاندې شرعي ضوابطو په صورت کې جايز دی :**

✓ دا چې د نارينه سره به کډون او اختلاط نه وي ، يعنې کار به په کامل ښځينه چاپيريال کې وي هغه که علمي څانګه وي ، روغتون ، دفتر او يا بل کار ځای وي ، لقول رسول صلى الله عليه وسلم «إياكم والدخول على النساء» [2] .

ژباړه: د بيګانه ښځو د خلوت نه ځان وساتئ.

✓ دا چې د هغې د ولي او سرپرست په اجازې به وي ځکه نارينه پر ښځو باندې مشران ټاکل شوي دي ، لقوله سبحانه وتعالى: [ الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ].

✓ دا چې دا کار به د والدينو او يا خاوند د حقوقو او همدارنګه د اولاد د روزنې او پالنې په لاره کې خنډ نه وي بلکې د هغوی د حقوقو پر

---

[1] - سوره الاحزاب :٣٣.

[2] - رواه البخاري ومسلم .

ځای کول به مقدم وي.

- ✓ دا چې دغه کار به د هغې د طبعې جوړښت سره مناسب وي لکه : د الله تعالی طرف ته دعوت ، درملنه ، تعلیم او تدریس ، لیکنه ، خیاطي او نور ، داسې سخت او وزمین کار به نه وي چې د هغې د توان څخه لوړ وي.
- ✓ دا چې شرعي حجاب به مراعاتوي.
- ✓ دا چې په هغه کې به سفر نه وي او که سفر وي د محرم څخه پرته به نه وي.
- ✓ او دا کار به اصلاً حرام نه وي لکه : د آرایشګاه حرام سینګار ، فلم ، سریال او د موسیقي څانګه کې کار کول.

۱۶- ملي سرود ته په احترام دریدل څه حکم لري ؟

د علمي څیړنو او افتاء دایمي ټولنه لیکي: ځواب:

د ملي سرود او ملي بیرغ د احترام د پاره دریدل جایز نه دي بلکي دا یو بدعت دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او خلفای راشدینو په دور کې نه وو ، او دا عمل د کامل توحید سره نه لګیږي . احترام او تعظیم یوازې د الله تعالی او دیني شعائرو په کار دی ، دا عمل د کفارو تقلید دی چې هغوی د خپلو حکمرانانو په تعظیم کې غلو کوي ، پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هغوی د مشابهت څخه منع فرمایلې ده- و الله اعلم.

# څلورم فصل

## نا روا دودونه او رواجونه

### وزلوبه (بزکشي)

زمونږ په هیواد افغانستان کې یو بل ناوړه او غیر اسلامي دود د بزکشی لوبه ده چې دغه لوبه اکثراً په ژمي کې د افغانستان په ځنو ولایاتو کې تر سره کیږي ، د دغه لوبې لپاره د سپمې شتمن خلک ښه چټک او مزې آسونه ساتي او هر یو د خپل آس لپاره یو آس ځغلونکی ساتلی وي چې د آس خاوند هغه ته معاش مقرر کړی وي او د هغه وظیفه یوازې د آس سانته او پالل او بیا په بزکشی کې د آس ځغلول وي.

کله چې د بزکشی وخت راشي نو هر څوک خپل آس د بزکشی میدان ته راولي ، د دغه لوبې لپاره لومړی یو خوسکی ذبحه کوي هغه په میدان کې اچوي ، آس ځغلونکي په ډیره چټکی آسونه د خوسکي طرف ته ځغلوي او هر یو د خوسکي پورته کولو کوښښ کوي.

د بزکشی دغه پورتنی شکل کوم چې اوس رواج لري حرام عمل دی او داسې یو جاهلي عمل دی چې نه شرعي مشروعیت او نه هم کومه مشروع ګټه لري او په لاندې علتونو حرام بلل کیږي:

١ -په دې لوبه کې د قمار معامله ده ځکه د لوبې ګټلو د پاره انعام ټاکل شوی وي : معاصر فقیه علامه زحیلي لیکي: «و یحرم بالاتفاق کل لعب فیه قمار... و ما خلا القمار و هو اللعب الذي لا عوض فیه في الجانبین و لا من احدهما فمنه ما هو حرام و منه ما هو مباح، لکن لایخلوکل لهو

غیر نافع عن الکراهة لما فیه من تضییع الوقت و الاشتغال عن ذکرالله و عن الصلوة و عن کل نافع مفید» [1].

ژباړه : په اتفاق سره ټولې هغه لوبې چې قمار پکې وي حرامې دي ، او کومې چې د طرفینو لخوا قمار پکې نه وي ځنې حرامې او ځنې مباح دي ،مګر د ګټې پرته ټولې لوبې د کراهیت څخه خالي نه دي ځکه د وخت ضایع او د الله تعالی د ذکر ، لمانځه او ګټورو شیانو څخه غفلت پکې وي .

همدارنګه مولانا محمد شفیع صاحب په جواهر الفقه کې د آسونو د لوبې ، د سپو جنګول ، جرګانو جنګول او نورو د قمار شکلونو او معاملو پوره وضاحت کړی دی او دغه د ابن کثیر قول یې نقل کړی دی:

کل شیء من القمار فهو من المَیْسِر حتی لعب الصبیان بالجو [2].

یعنی : هر هغه څیز چه په قمار کې داخل وي – هغه د میسر په حکم کې داخل دي چه حتی د ماشومانو په غوزانو یا چهارمغزو وغیره باندی د ګټلو پیللو لوبې کوي هغه هم قمار یا جواري ده.

۲ -دا چې د آسونو خاوندان دومره لوی لګښت د جهاد د تیاري لپاره نه بلکي د یوه بې ګټې او ناروا کار د پاره تر سره کوي.

۳ -دا چې د بزکشی لومړی بنسټ ایښودونکی چنګیزخان دی هغه دغه ناروا عمل په ۷۱۲هجري کې د لومړي ځل لپاره په اسلامي هیوادونو کې رواج کړ چې پر دغو هیوادونو یې وحشانه یرغل وکړ او د یرغل په جریان

---

(۱)- الفقه الاسلامی وادلته ۵۶۱/۳ .

(۲)- تفسیر ابن کثیر ۹/۳

کې يې ډير بې کاره او جاهلي رواجونه پرې ښودل.
۴ -دا چې پر کوم خوسکي چې دوی لوبې کوي هغه الله تعالی د دوی ددې ډول هوس لپاره نه دی پيدا کړی ، بلکي الله تعالی د يوې معقلې ګټې اخيستنې د پاره پيدا کړی دی نه دا چې لوبې پرې وکړي او هغه په ظالمانه توګه داسې دانګ دانګ او خاورو کې ولوغړوي چې انسان لا څه کوي چې د حيوان له خواراک څخه هم ووځي.
۵ -دغه لوبه دومره وحشي لوبه ده چې چاپ اندازان د خپلې تنخوا ، انعام او د خپلو بادارانو د خوشحاله کولو پخاطر يو د بل پښې او لاسونه ماتوي ځنې وختونه مرګ هم مينځ راځي او هيڅ پروا هم نه پرې کوي نه د قتل سزا شته او نه هم ديت ځکه چې په لوبه کې وژل شوی دی صرف واريثانو ته يې يو څه اندازه پيسی ورکول کيږي او بس.
۶- په بزکشی کې د ټولو څخه لوی جنايت دا دی چې د بزکشی لوبه اکثراً د ماسپښين څخه وروسته پيلېږي د بزکشی لپاره جمع شوي سيل کوونکي خلک تر ماښام پورې سيل کوي او اکثريت د دوی لمونځ نه ادا کوي بلکي ډير کم د دوی لمونځ ادا کوي او دا هغه جنايت دی چې ددې په وسيله خلک د الله تعالی د ذکر او فريضې څخه عافله کيږي او بلاخره په سلګونو خلک د لوی جرم مرتکب ګرځي.
رسول الله صلی الله عليه وسلم د بې هوده لوبو او لهو لعب په باره کې فرمايلي دي چې:
«كُلُّ شَيْءٍ لَيْسَ مِنْ ذِكْرِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ فَهُوَ لَغْوٌ وَسَهْوٌ إِلا أَرْبَعَ خِصَالٍ : مَشْيُ الرَّجُلِ بَيْنَ الْغَرَضَيْنِ ، وَتَأْدِيبُ فَرَسَهُ ، وَمُلاعَبَتُهُ أَهْلَهُ ، وَتَعْلِيمُ

السِّبَاحَةِ » [1].

يعنې : ټولې لوبې او بازئ بې هوده او د الله تعالى له ذكر څخه غافله كوونكي دي بغير له څلورو شيانو :د سړي تګ يا منډه د دوو اهدافو تر مينځ ، د آس تأديب او آمده كول د جهاد پاره، د خپل اهل سره ملاعبه او لامبو يا آب بازي.

پورته څلور شيان كچېرې د ښه مقصد لپاره وي (لكه جهاد ) نو عبادت شميرل كيږي او په هغه باندې اجر دي او دا نيت نه وي نو مباح دي .

نو ثابته شوه چې د بزكشی لوبه د اسلام خلاف ظالمانه او جاهلانه لوبه ده چې د مسلمان له شانه سره بالكل نه ښايي.

## د حيواناتو جنګول ظالمانه عمل دی

پوښتنه: تاسوته معلومه په ځينو ځايو كې زيات داسی كارونه شته چی د زياتو خلګو له لوري په ډليزه توګه ترسره كيږی له يوې خوا امكان لري ځينې له دغو كارونو زياته ګناه هم ولري خو د خلګو په مينځ كې عادي شوي او كناه هم نه ورته وايي لكه د كورنيو حيوانات زركه ، سپی ، كرك ، چرګ او داسې نور د خلګو لخوا په كورنو كې ساتل كيږي او جنګول كيږي. پوښتنه مې داده چې دا څه حكم لري يعنې جنګول يې چې په ځينو حالاتو كې ورباندې پيسې هم اړدي يعنې كه دی زرک مات شو نو ماته به دونه روپۍ راكوې. كه په تفصيل سره ځواب راته راكړئ ځكه چی غواړم چی د دی كار په ضدكلكه ملا وتړم خو مخكی زه بايد مكمل معلومات په

---

[1] – رواه النسائي .

دی هکله ولرم.

ځواب : د اسلام مقدس دين پر حيواناتو باندې د رحم کولو ډير تينګار کړی ، پر حيواناتو باندې رحم کول الله (جَل جلا له) ته خوښ عمل دی .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي «بَيْنَا رَجُلٌ يَمْشِي فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَنَزَلَ بِئْرًا فَشَرِبَ مِنْهَا، ثُمَّ خَرَجَ فَإِذَا هُوَ بِكَلْبٍ يَلْهَثُ يَأْكُلُ الثَّرَى مِنَ الْعَطَشِ، فَقَالَ: لَقَدْ بَلَغَ هَذَا مِثْلُ الَّذِي بَلَغَ بِي، فَمَلأَ خُفَّهُ، ثُمَّ أَمْسَكَهُ بِفِيهِ، ثُمَّ رَقِيَ، فَسَقَى الْكَلْبَ، فَشَكَرَ اللَّهُ لَهُ، فَغَفَرَ لَهُ» قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَإِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ أَجْرًا؟ قَالَ: «فِي كُلِّ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ»[1] .

ژباړه : رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : يو ورځ يو كس ميزل كولو او هغه ( د ميزل په وخت كې ) سخت تږى شو ، يوې كوهي ته وركښته شو او له هغه څخه يې اوبه وڅښلې او بهر شو ، نا ببره يې يو سپى وليد چې د سختې تندې له امله يې خپله ژبه ايستلې ده او خاورې خوري . ( له ځانه سره يې ) وويل : دا سپى هم داسې تږى دى لكه زه چې تږى وم . ( دوباره چاه ته ور كښته شو ) ، خپله موزه يې له اوبو ډكه كړه هغه يې په خوله كې و نيوه او له چاه څخه پورته شو او سپي ته يې اوبه وركړې .

الله (جل جلا له) له هغه څخه راضي شو او د هغه ګناهونه يې و بخښل .

صحابوو وويل : اى رسول الله ! الله (جل جلا له ) مونږ ته د حيواناتو سره د نيكى په كولو سره هم اجر را كوي ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل : ( د هر ذى روح سره نيكي كول ثواب لري) .

---

(١) – رواه البخاری:٢٣٦٣.

د حيواناتو جنګول :

اسلامې شريعت پر حيواناتو باندې ظلم کول ، د هغه په جنګ اچول او د هغه نښه او هدف ګرځول حرام کړي دي .

فقه السُنه ليکي : جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم د حيواناتو جنګول يو بل ته د هغوی تحريکول منع کړي دي ، د ابن عباس ﷺ نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حيواناتو يو بل ته تحريکول او د هغه جنګول داسې منع کړی دي لکه د حيواناتو په نښه کول يې چې منع او حرام کړی دي .

رسول اللَّه صلَّى اللَّه عليْه وسلَّم فرمايلي: «عُذِّبَتْ امْرَأَةٌ فِي هِرَّةٍ سَجَنَتْهَا حَتَّى مَاتَتْ فَدَخَلَتْ فِيهَا النَّارَ لا هِيَ أَطْعَمَتْهَا وَسَقَتْهَا إِذْ حَبَسَتْهَا وَلا هِيَ تَرَكَتْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الأَرْضِ »[1].

يعنې : رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : يوې ښځې پشی بندي کړې وه چې نه يې هغه ته د خوراک شی ورکول او نه د خښاک او نه يې خوشې کوله چې د ځمکې له ورشو څخه څه و خوري ، هغه پشی بلاخره له لوږې څخه مړه شوه ، (ددې ظلم په وجه ) هغه ښځه دوزخ ته لاړه .

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ الله عَنْهُمَا: أَنَّهُ مَرّ بِنَفَرٍ نَصَبُوا دَجَاجَةً يَرْمُونَهَا. فَلَمَّا رَأَوْهُ تَفَرَّقُوا عَنْهَا، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: مَنْ فَعَلَ هَذَا؟ إِنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم لَعَنَ مَنْ فَعَلَ هَذَا [2].

---

(1) - رواه البخاري ( ٢٢٣٦ ) ومسلم ( ٢٢٤٢ )

(2)- (بخاری:٥٥١٥).

ژباړه : له ابن عمر ﷺ نه روایت دی چې هغه د یوې ډلې څخه تیردلو چې هغوی چرګ هدف او نښه کړی وو او د هغه په طرف یې غیشي ویشتل ، کله چې هغوی ابن عمر ولید تیت شول . ابن عمر وویل : دا کار چا تر سره کړی دی ؟ څوک چې دا کار وکړي رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغوی باندې لعنت ویلی دی .

لعنت د سختو ګناهونو د پاره استعمال شوی دی مطلب یې دا دی چې څوک له دغه ګناه څخه توبه و نه باسي رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته ښیرا کړی ده چې د الله جل جلا له د رحمت څخه دې لرې وي .

د حیواناتو په نښه کول او جنګول حرام او ظالمانه عمل دی .

**د حیواناتو جنګولو په لوبو کې د شرط او پیسو ایښودل قمار دی :**

**قمار:** هر هغه معامله که په بازئ لګولو، شرط لګولو یا دبخت او اتفاق پر بنا وي چه ګټه او تاوان یې مبهم او نامعلوم وي هغی ته قمار او مَیْسِر وائي .

په هره لوبه کې چې شرط لګول وي قمار دی ، د حیوان جنګولو په ظالمانه لوبه کې شرط لګول قمار دی .

کل شیء من القمار فهو من المَیسِر حتی لعب الصبیان بالجو [1].

یعنی: هر هغه څیز چې په قمار کې داخل وي د مَیسِر په حکم کې داخل دی تر دې چې د ماشومانو په غوزانو یا چهارمغزو وغیره باندی د ګټلو بیللو لوبې کوي هغه هم قمار یا جواری ده .

---

(1)- ابن کثیر ۳ / ۹۱.

قمار عظيمه ګناه ده چې په قرآنکريم کې د شيطان عمل ښودل شوی دی او دغه جرم د بت پرستی سره برابر ذکر شوی دی :
قوله تعالى :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ](1) .
ژباړه: ای مؤمنانو! يقيناً چه شراب او قمار او بتان اوغشي ( د فال ، دا څلور واړه ټول ) پليت دي له کاره د شيطان څخه دي نو ځان وساتئ تاسی له دې څخه لپاره ددی چه نجات ومومئ.

**د حيواناتو جنګول د کافر قوم ميراث دی :**

دا ظالمانه عمل چې بې خولې او ژبې حيوانات يو د بل په مقابل کې تحريک او جنګوي ، دغه حيوانات په سرو وينو ککړ ، زخمې بدن څخه دوی خوند اخلي د کافر قوم ميراث دی چې وروسته د دين څخه نا خبره مسلمانانو کې رواج شوی دی .
نن ډير د افسوس ځای دی چې په دې ظالمانه عمل باندې ځنې مسلمانان ګرفتار دي ، هغوی ته بيا په سلګونو او زرګونو مسلمانان ولاړ وي او د دغه ظالمانه شيطاني عمل سيل کوي .
ای افسوس !!!

(1)- سوره المائده : ۹۰ .

**په دې ګناه کې سيل کوونکي هم شامل دي :**

ځکه چې دوی پر دغه ظالمانه عمل باندې راضې او خوښ دي نو ځکه په دې شيطاني عمل کې ټول له يوه سره شامل دي ، په دليل د لاندې حديث شريف :

« إِذَا عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ كَانَ مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا ، وَقَالَ : مَرَّةً أَنْكَرَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا » [1].

ژباړه: کله چې په يوه ځمکه کې ګناه وکړ شي نو چه کوم خلک هلته موجود وي او په ګناه خفه شي دوی د هغه خلکو په شان دی چه هلته موجود نه وي ( يعنی د دوی څخه د دغه ګناه په اړه پوښتنه نه کيږي ) او چې کوم خلک په دغه ځمکه کې نه وي او پدې ګناه راضي وي نو هغوی د هغې خلکو په شان دي کوم چه دغه ځای کې اوسي (دوی په هغه کناه کې شريک وي ) .

و الله سبحانه و تعالی اعلم

## د بوکس او کاراټې ورزش څه حکم لري ؟

پوښتنه: که د کراټې په باره ماته معلومات راکړئ چې د اسلام له نظره څه حکم لري ، په دغه لوبه او مسابقاتو کې د يو بل وهل وي چې کله د مرګ سبب هم کيږي ؟

ځواب: د بوکس او کراټې د ورزش ، لوبې او مسابقات په اړه د اسلامي فقه نړيوالې ټولنې (مجمع فقه الاسلامي) داسې حکم کړی دی:

---

(1) – رواه ابؤداود ۴۳۴۵ .

د کراټې ورزش او مسابقات چې اوس مهال زمونږ په هیوادونو کې رواج لري ، دغه ورزش په اسلامي شریعت کې حرام دی ځکه چې ددې بنسټ او آساس مغلوب طرف ته ضرر او اذیت رسول دي ، هغه ضرر چې د هغه بدن ته رسیږي لکه د ړندېدو ، تلف او سخت ضرر ، د اندامونو ماتېدل او حتی د مرګ سبب کیږي چې وهوونکي ته هیڅ مسئولیت متوجه نه وي او حال دا چې ټول طرفدار کتونکي او مدد کوونکي یې سیل کوي او وربانديې خوشحالیږي.

د تمرین اصلي مقصد د بدن رغتیا ته ګټه رسول دي نه ځان او بل ته ضرر رسول.

دا عمل په اسلام کې حرام دی لقوله سبحانه وتعالی : [وَلا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ][1]

او فرمایي : [ وَلا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ][2]

او رسول الله ﷺ فرمایلي:« لا ضَرَرَ ولا ضِرَارَ »[3]

جاء في المجمع فقه الأسلامية:

"يرى مجلس المجمع بالإجماع أن الملاكمة المذكورة ، التي أصبحت تمارس فعلاً في حلبات الرياضة والمسابقة في بلادنا اليوم : هي ممارسة محرمة في الشريعة الإسلامية ؛ لأنها تقوم على أساس استباحة إيذاء كل من المتغالبين للآخر ، إيذاء بالغًا في جسمه ، قد يصل به إلى العمى ، أو

[1]- سوره البقره :۱۹۵ .

[2]- سوره النسآء : ۲۹ .

[3]-

التلف الحاد ، أو المزمن ، في المخ ، أو إلى الكسور البليغة ، أو إلى الموت ، دون مسئولية على الضارب ، مع فرح الجمهور المؤيد للمنتصر ، والابتهاج بما حصل للآخر من الأذى ، وهو عمل محرم مرفوض كليًّا وجزئيًّا في حكم الإسلام ؛ لقوله تعالى : ( وَلا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ ) ، وقوله تعالى : ( وَلا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ) ، وقوله ﷺ : ( لا ضَرَرَ ولا ضِرَارَ ). على ذلك فقد نص فقهاء الشريعة على أن من أباح دمه لآخر فقال له : اقتلني . أنه لا يجوز له قتله ، ولو فعل كان مسئولاً ومستحقًّا للعقاب.

وبناء على ذلك يقرر المجمع أن هذه الملاكمة لا يجوز أن تسمى رياضة بدنية ، ولا تجوز ممارستها ؛ لأن مفهوم الرياضة يقوم على أساس التمرين دون إيذاء أو ضرر ، ويجب أن تحذف من برامج الرياضة المحلية ، ومن المشاركات فيها في المباريات العالمية ، كما يقرر المجلس عدم جواز عرضها في البرامج التلفازية ، كيلا تتعلم الناشئة هذا العمل السيئ وتحاول تقليده.

و الله سبحانه وتعالى اعلم

## د کرکيټ لوبه او مسابقه د اسلام له نظره

السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته زما يو پوښتنه ده د کرکيټ لوبه کول څنګه دي د اسلام له نظر؟ بعضې خلک په کرکيټ باندې ټورنمنټ جوړوي هغه په داسې ډول چې ډېر ټيمونه راغواړي د هر ټيم څخه پسې اخلي بيا دغه ټيمونه پخپل منځ کې لوبې سره کوي که هر چا يې فاينل

وګټي هغه ته په دغه پیسو کپ رانسي او یا هم دغه ټولې پسې ورکوي .آیا دا قمار کې راځی که نه؟ او ددې څومره عذاب دی بعضې خلک بیا دا حیله ورته کوي چې دا خو هر یو خپل د متو په زور ګټې بعضې بیا وایي چې دا خو ټورنمنټ کې د داخلیدولو فیس دی هیله ده چې په دې اړه د پوره حوالو او عباراتو او بیان سره جواب راکړئ زه یې نور ته هم ورښکاره کوم ځکه ډیر خلګ په همدغه ګناه اخته دي.

احمد نصیر احمدي

ځواب :کرکیټ ، فوټبال یا والیبال او نورو ته چې کومو معاصرو فقهاوو اجازت ورکړی دی ، لاندې شرایط به پکې وي:

۱ -باید چې انسان له دیني واجباتو مشغول او غافل نه کړي لکه : جومات د جماعت لپاره تلل ، علم شرعي ، نور تعلیمات، نفقه ، د والدین خدمت او نور.

۲ -شرط وهل او قمار به پکې نه وي.

۳ -د اسلامي شریعت مخالفت به کې نه وي لکه : بې ستري ، خصومت ، دوښمني او نور.

۴ -عادت به یې نه جوړوي او خپل کسب به یې نه ګرځوي .

کچیرې پورني شرایط پکې نه وي دین ، مال ، علم او کورنۍ ته زیان وي جواز نلري ځکه د اسلام قاعده ده چې :«لا ضرر و لا ضرار » ( په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول حرام دي).

په همدې وجه موسوعة الفقهیة (هیئت کبار علماء اسلام ) لیکي:

ولا يجوز لأحدٍ أن يفتي بحكم لعب " كرة القدم " وغيرها – فضلاً عن احترافها – مع إغفاله واقع هذه اللعبة في هذا الزمان ، وبيئتها التي تحيط بها ، ففي هذه اللعبة كشف للعورات ، وتضييع للصلوات ، والتعرض للفتن والشهوات ، واحتمال الأذى والإصابات ، مع ما فيها من الغفلة عن الطاعات .[1]

يعنې : د هيڅ چا لپاره جايزه نه ده چې د فوټبال او نورو په اړه فتوى ورکړي ، او يا د کسب او عادت په توګه يې ومني ، سره له دې چې په نن وخت په دغه لوبه کې غفلت موجود دى ، او چاپيريال يې احاطه کړى دى ، په دې لوبه کې بې ستري ، د لمونځونو ضائع کول ، د فتنو او شهواتو وړاندې کول ، د ضرر او خصومت د مينځته راتللو احتمال او په دې لوبه کې د عبادت څخه غفلت دى.

**د قمارمعامله :**

په لوبه او بارۍ کې شرط لګول ، د ګټونوالو څخه پيسې جمع کول او بيا هغه د لوبې وړونکي يو کس او يا څو کسانو ته ورکول د قمار معامله ده.

جواري چې په عربي کې ورته (مَيْسِرة) او (القمار) وايي . مَيْسِر په لغت کې ممکن او آساني او په آسانۍ سره لاس ته راوړلو ته وايي.

قمار د قمر له لفظ څخه اخيستل شوى دى قمر سپوږمۍ ته وايي ځکه سپوږمۍ کله وړه او کله لويه وي په قمار کې هم کله ګټه او کله تاوان يعنې برد او باخت وي.

[1]- الموسوعة الفقهية ٦٩/٢ .

په اصطلاح کې هر هغه معامله که په بازۍ لګولو، شرط لګولو یا د بخت او اتفاق پر بنا وي چه ګټه او تاوان یې مبهم او نامعلوم وي هغې ته قمار او میسر وایي.

ابن کثیر رحمه الله وایي:

کل شیء من القمار فهو من المیسر حتی لعب الصبیان بالجو. [1]

یعنې: هر هغه څیز په قمار کې داخل وي – هغه د میسر په حکم کې داخل دی چه دماشومانو په غوزانو یا چهارمغزو وغیره باندی د ګټلو پیللو لوبې کوي هغه هم قمار یا جواري ده.

و جاء في قواعد الفقهية:

هذا أكل مالٍ بالباطل، وفي نفس الوقت، هو قمارٌ، فيه الغَرَرِ، لماذا؟ لأنه كل يدفع، والذي يحصل على الجائزة واحدٌ أو اثنان فقط، فكان من أنواع القمار، وكان مما منع منه الشرع؛ لوجود الغرر. [2]

ژباړه: دا په باطله طریطه د مال خوړل دي ، او په عین وخت کې قمار دی او غرر دی ځکه چې ټول څه پیسې او مال اچوي او هغه د یوازې د جایزې ګټونکي یو کس یا دوه کسه اخلي نو دا د قمار یو ډول دی چې شرعاً حرام ځکه غرر (جهل او ابهام ) پکې دی .

او همداسې د بیرونې طرف څخه د جایزو ورکول هم جواز نلري.

[1] - تفسیر ابن کثیر ۹۱/۳ .

[2] - القواعد الفقهیة / دوکتور سعد بن ناصر – الدرس العاشر الاکادیمیة الاسلامیة .

فأجابت : "مُباريات (مسابقات) كرة القدم التي على مال أو نحوه من جوائز حرام ؛ لكون ذلك قمارا ؛ لأنه لا يجوز أخذ السبق وهو العوض إلا فيما أذن فيه الشرع ، وهو المسابقة على الخَيلُ والإبل والرِمَايَة ، وعلى هذا فحضور المُباريات حرام ، ومشاهدتها كذلك ، لمن علم أنها على عوض ؛ لأن في حضوره لها إقرارا لها" [(١)].

ژباړه : د واليبال په مسابقاتو کې چې په مال ، عوض او جايزې ورکولو سره وي حرام او دا قمار دى ، ځکه چې په مسابقاتو باندې جايزه ورکول په هغو مسابقاتو جايز دي چې شرعاً جايز وي لکه : د آسونو ځغلولو ، اوښانو او د نښې وشتلو باندې نو ددغو لوبو سيل او حضور هم حرام دى ځکه په دې کې قمار دى او سيل او تماشا کول د اقرار او رضاء معنى لري .

قمار عظيمه ګناه ده چې د شرابو او بت پرستۍ سره يو ځاى ذکر شوي او د شيطان عمل بلل شوى دى.

قوله تعال:[ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوآ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالاَنصَابُ وَالاَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] [(٢)].

ژباړه: اى مؤمنانو! يقيناً چه شراب او قمار او بتان اوغشى ( دفال ، دا څلورواړه ټول ) پليت دى له کاره د شيطان څخه دى نو ځان وساتئ تاسى له دې څخه لپاره ددى چه نجات ومومئ.

[1]- فتاوى اللجنة الدائمة.

[2]- سوره المائده : ٩٠ .

و الله سبحانه وتعالی اعلم

## ورق یا قطعه بازي

پوښتنه : یوه بازي ده چې په هغه کښې پاچا وزیر غلام ملکه او د یو څخه تر لسو پورې ورقې وي نو دغه بازي کول ګناه لري که نه ؟

ځواب: الله تعالی انسان د یوه ستر هدف د پاره پیدا کړی دی او هغه ته یې امر کړی دی چې خپل شرعي وظایف په ښه شان تر سره کړي او د قیامت په ورځ د هغه څخه د هرې لحظې پوښتنه کیږي چې عمر دې په څه کې تیر کړی دی ، نو ځکه مسلمان باید خپل قیمتي وخت په بېهوده او بې ګټې چې د نیا او آخرت په زیان وي تیر نه کړي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د بې هوده لوبو او لهو لعب په باره کې فرمايلي دي چې:

» کل شيء لیس من ذکرالله فهو لغو و سهو الا اربع خصال: مشي الرجل بین الغرضین و تأدیب فرسه، و ملاعبته اهله، و تعلیم السباحة[1] .

ژباړه: ټولې لوبې او بازۍ بې هوده او د الله تعالی له ذکر څخه غافله کوونکې دي بغیر له څلورو شیانو :د سړي تګ یا منډه د دوو اهدافو تر مینځ ، د آس تأدیب او آمده کول ، د خپل اهل سره ملاعبه او لامبو یا آب بازي.

ددې صحیح حدیث په دلیل ټولې لوبې بې هوده او لهو لعب بلل کیږي چې ددې جملې یو هم ورق بازې ده ، چې علماؤ حرام او مکروه تحرمي بللې ده

---

[1]- أخرجه النسائي،الدر المنثور:۸۶/۴

، امداد المفتين په صفحه (۱۰۰۲ ) او د هند ستر مفتي په كفايت المفتي (۱۹۹/۹) کې دا لوبه حرامه بللې ده .

او همدارنګه معاصر فقيه علامه زحيلي ليکي» :و يحرم بالاتفاق كل لعب فيه قمار... و ما خلا القمار و هو اللعب الذي لا عوض فيه في الجانبين و لا من احدهما فمنه ما هو حرام و منه ما هو مباح، لكن لايخلوكل لهو غير نافع عن الكراهة لما فيه من تضييع الوقت و الاشتغال عن ذكرالله و عن الصلوة و عن كل نافع مفيد»[1] .

همدارنګه د البلد الحرام علماء ليکي : سترنج او ورق بازي حرامه دي ځکه دا غفلت مينځ ته راوړي او د الله تعالی د ذکر څخه د عفلت سبب ګرځي.[2] .

او که په ورق بازی کې شرط وي قمار دی چې قمار عظيمه ګناه او شيطاني عمل دی.

و الله سبحانه و تعالی اعلم

## د سترنج لوبه

پوښتنه : د سترنج لوبه څه حکم لري ځنې کسان وايي چې دا لوبه ذهن ته انکشاف ورکوي ؟

ځواب: د شطرنج لوبه د جمهورو فقهاوو په نزد حرامه ده په دليل د لاندې احاديثو:

---

[1]- فقه الاسلامي ۵۶۱/۳ .

[2]- فتاوي علماء البلد الحرام -۴۳۷/۴.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«مَنْ لَعِبَ بالنَّرْدَ شِيرِ فَكَأَنَّماَ صَبَغَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ ودَمِهِ»[1] .

يعنې : چا چې د نرد شير (شطرنج) لوبه وکړه هغه داسې دی لکه د خوګ په خوښه او وينه يې چې لاس ککړ کړی وي.

ابی موسی اشعری رضي الله عنه له رسول صلی الله عليه وسلم څخه روايت نقل کړی دی چې هغه فرمايلي دي :«من لعب بالنرد فقد عصى الله ورسوله»[2] .

يعنې : څوک چې د شطرنج لوبه کوي پس هغه د الله او د هغه د رسول څخه سرغړونه وکړه.

نافع وايي : أن عبد الله بن عمر كان إذا وجد أحدا من أهله يلعب بالنرد، ضربه وكسرها.

يعنې: کله به چې عبدالله بن عمر رضی الله د خپل اهل څخه څوک په شطرنج وليدل نو هغه به يې ورته ماتولو[3] .

جاء في الموسوعة الفقهية :

اللَّعِبُ بِالنَّرْدِ حَرَامٌ عِنْدَ جُمْهُورِ الْفُقَهَاءِ ،لِقَوْلِهِ – صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ” : مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ فَكَأَنَّمَا صَبَغَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ ” وَلِقَوْلِهِ : مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ ‹وَلأَنَّهُ إِنْ قَامَرَ بِهِ فَالْمَيْسِرُ حَرَامٌ

[1]- رواه مسلم .

[2]- موطاء امام مالک و ابوداود.

[3]- صحيح الادب المفرد ٩٦٠ بالسناد صحيح موقوف

بِالنَّصِّ وَإِنْ لَمْ يُقَامِرْ فَهُوَ عَبَثٌ وَلَهْوٌ  قَالَ النَّبِيُّ – صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَيْسَ مِنَ اللَّهْوِ إِلا ثَلاثٌ : تَأْدِيبُ الرَّجُلِ فَرَسَهُ ، وَمُلاعَبَتُهُ أَهْلَهُ ، وَرَمْيُهُ بِقَوْسِهِ وَنَبْلِهِ [1]

او ابن عابدين په حاشيه الدر المختار کې ليکلي:

وَإِنَّمَا كُرِهَ لأَنَّ مَنْ اشْتَغَلَ بِهِ ذَهَبَ عَنَاؤُهُ الدُّنْيَوِيُّ , وَجَاءَهُ الْعَنَاءُ الأُخْرَوِيُّ فَهُوَ حَرَامٌ وَكَبِيرَةٌ عِنْدَنَا , وَفِي إبَاحَتِهِ إعَانَةُ الشَّيْطَانِ عَلَى الإِسْلامِ وَالْمُسْلِمِينَ[2]

د تحريم علت : کچېرې قمار ورسره وي نو واضح ده چې ستر جرم دی او په داسې کس باندې شرعاً تعذير دی مګر د قمار پرته د شطرنج د تحريم علت ابن قيم رحمه الله داسې بيانوي:

کچيرې د شطرنج لوبه د عوض څخه خالي وي نو تحريم يې داسې دی لکه د شرابو څښلو کوم چې بغض ، کينې او دوښمنۍ سبب کيږي ، د الله تعالی د ذکر او عبادت څخه د غفلت سبب جوړيږي او د کينې ، دوښمنۍ او غفلت داسې ذريعه ده لکه : قمار او شراب لکه څنګه چې الله تعالی فرمايي: [ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاء فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ] [3]

---

[1]- الموسوعة الفقهية جزء ٤٠ ص ٢٢٤

[2]- حاشيه الدر المختار  جلد ٥ ص ٢٥٢

[3]- الفروسية لابن القيم ص ١٦٩

ذهن په مطالعه ، علمي بحث او علمي تمرین سره زیادیږي نه په دا ډول شیطاني لوبو چې دیني ، علمي او اقتصادي پرمختګ له زوال سره مخ کوي.

و الله سبحانه وتعالی اعلم

## په کور کې د سپي ، تصویرونو او مجسمو ساتل

**اول :** په کور کې بې ضرورته د سپي ساتل منع دي:

جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي :«مَنْ أَمْسَكَ كَلْبًا فَإِنَّهُ يَنْقُصُ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهِ قِيرَاطٌ إِلاَّ كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ مَاشِيَةٍ» وعنه في رواية: «إِلاَّ كَلْبَ غَنَمٍ أَوْ حَرْثٍ أَوْ صَيْدٍ»[1].

ژباړه: هر چا چې سپی وساتلو د هغه کس د هرې ورځې له اعمالو څخه یو قراط کمیږي مګر د کرهنې د فصل ساتلو ،د کورنیو ځناورو نیولو او په بل روایت کې راغلي مګر دا چې د کرهنې د فصل ساتلو ، دام نیولو او یا د ښکار د پاره وي .

وقال النووي رحمه الله :

" أَنَّهُ يَحْرُم اِقْتِنَاء الْكَلْب بِغَيْرِ حَاجَة , وَيَجُوز اِقْتِنَاؤُهُ لِلصَّيْدِ وَلِلزَّرْعِ وَلِلْمَاشِيَةِ . والأصح : أنه يجوز اقتناء الكلب لحفظ البيوت ، قِيَاسًا عَلَى الثَّلَاثَة المذكورة في الحديث ، عَمَلًا بِالْعِلَّةِ الْمَفْهُومَة مِنْ الْأَحَادِيث ، وَهِيَ الْحَاجَة"

---

[1]- رواه البخاري :٢٣٢٢ .

(بې ضرورته په کور کې د سپي ساتل حرام دي ، او د ښکار ، زراعت او څناورو نیولو د پاره جایز دی ، او د کور حفاظت هم قیاس دی په دریو ذکر شویو شیانو کوم چې حاجت دی ) .

د حرمنیو عالم ابن عُثَیمِین لیکي : د ضرورت په وخت کې د کور د حفاظت او چوکدارۍ د پاره په هغه صورت کې جایز دی چې کور یې له ښار یا کلي څخه وتلی وي او یا په صحرا کې وي .

او په کوم کور کې چې سپی وي هغه کور ته ملائکې نه ننوځي ، په حدیث شریف راغلي :«لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةٌ» [1] .

یعنې: هغه کور ته ملائکې نه ننوځي په کوم کې چې سپی او تصاویر وي .

او کوم کس چې په کور کې بې ضرورته سپی ساتي او محبت ور سره لري مچي کوي یې او په غیږ کې نیسي نو دا عمل د کافر قوم سره تشبح ده ځکه چې دا کار د کافرانو له عاداتو څخه یو عادت دی .

«من تشبه بقوم فهو منهم» د حدیث شریف په وعید کې شامل دی.

د سپي لاړې او پسخورده د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد نجس ده .

**دوهم** : په کور کې د ساه لرونکو تصویرونو ځړول او مجسمو ساتل حرام دي .

په حدیث شریف راغلی : « يَا عَائِشَةُ، أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُضَاهُئونَ بِخَلْقِ اللَّهِ » [2] .

---

[1]- رواه البخاري ٣٢٢٥ و مسلم ٢١٠٦ .

[2]- رواه البخاري و مسلم .

ژباړه: اى عايشې ! د قيامت په ورځ له خلكو څخه سخترين عذاب هغو كسانو ته وركول كيږي چې دوى كوښښ كوي د الله تعالى د خلقت په مثل شى جوړ كړي .

كوم كور كې چې مجسمې وي هغه كور ته ملائكې نه ننوځې ، ځكه دا د كافران سره مشابح عمل دى .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: «لا تدخل الملائكة بيتا فيه تصاوير أو تماثيل»[1].

يعنې : په كوم كور كې چې تصاوير او مجسمې وي هغه كور ته پرېښتې نه ننوځي .

د نجونو د نانځكو په اړه د فقهاؤ اختلاف دى ځنې وايي دا په مجسمو كې نه راځي او ځنې وايي دا هم په مجسمو كې شامليږي . فتاوى المحمودي حنفي پلاستكي نانځكې هم په مجسمو كې داخلې كړي دي[2].

د ساه لرونكو تصويرونو او مجسمو بيع او تجارت كول حرام دي ځكه د اسلامي شريعت عامه قاعده ده كوم شى چې حرام وي د هغه بيع او تجارت هم حرام وي .

و الله سبحانه وتعالى اعلم

---

[1]- رواه مسلم ٢١١٢ .

[2]- فتاوى المحمودي حنفي ٢١/٣ .

# پنځم فصل

## د شرع خلاف طاغوتي پرېکړو دود

زمونږ په ټولنه کې د وضعي او یا غربي ډیموکراسۍ په څیر په ځنې خلکو کې دا رواج دی چې د اسلامي شریعت پرته په ټولنیزو دودونو او جرګو باندې خپلې فیصلې او پرېکړې کوي .

لومړی باید د فیصلې او صلحې تر مینځ فرق وپیژنو او بیا د دواړو شرعې ضوابت بیانوو :

## صلح (روغه )

صلح په لغت کې جوړې اوسازش ته وایي او د شریعت په اصطلاح کې یو عقد او تعهد دی چې د هغه په وسیله د طرفینو په مینځ کې د خصومت ،جنجال او دوښمنۍ مخه نیول کیږي . د صلح په کولو سره یو طرف د دوښمنۍ او جنجال د ختمولو په خاطر تر خپل حق یا څه حصې د خپل حق څخه مقابل طرف ته ورتیریږي ( د الله تعالی د رضا او خوښۍ د پاره ).
نو صلح د طرفینو د شخړې ، جنګ جګړې او اختلافات مخ نوی کول او د هغوی راضي کول بغیر له الزام څخه ( یو نصیحت او خیرخواه حرکت بلل کیږي چې الزام پکې نه وي) .

## د صلح کولو فضیلت

الله سبحانه وتعالی فرمایلي: {لاَّ خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ إِلاَّ مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلاَحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ ابْتَغَاء مَرْضَاتِ

اللّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْراً عَظِيماً }[1]

ژباړه : د دوی په ډیرو پټو خبرو کې کوم خیر نشته ، خو هغه چا چې په کوم خیرات یا ښه کار یا د خلکو تر مینځ یې په روغه امر کړی دی او څوک چې دا کار د الله تعالی د رضا د پاره کوي ، نو ژر به مونږ ده ته ډیر لوی اجر ورکړو .

له ابی درداء ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«ألا أخبركم بأفضل من درجة الصيام والصلاة والصدقة؟ قالوا: من هو يا رسول الله، قال: إصلاح ذات البين...»[2].

ژباړه : ایا تاسې د داسې عمل نه خبر نه کړم چې تر نفلي روژې نفلي لمونځ او صدقې نه یې درجه غوره وي ؟ ویې ویل هو یا رسول الله ویې فرمایل : د خلکو په مینځ کې اصلاح کول .

## صلح څنګه کول پکار دي

صلح کونکی باید د حق طرفداري وکړي ، د خپلوۍ ، تربګینت ، سمت پرستۍ پر بنا د ظالم طرف طرفداري ونه کړي ، صلح کونکی باید د مظلوم او په حق طرف ونیسي او مقابل لوری په اخلاقو او نصیحت د حق لورې ته دعوت کړي.

الله تعالی فرمایي : [وَلاَ تَلْبِسُواْ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُواْ الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ][1].

---

[1] - سوره النساء: ۱۱۴

[2] - رواه ابؤداود بالسناد صحیح .

ژباړه: او حق له باطل سره مه ګډوئ سره له دې چې تاسې ښه پوهیږئ نو حق مه پټوئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : «من مشی ظالم ليقويه و هو يعلم انه ظالم فقد خرج من الاسلام» [٢]

ژباړه: څوک د ظالم سره ددې د پاره تګ وکړئ چې هغه تقويه کړي ، په داسې حال کې چې دی د هغه په ظلم خبر وي نو يقيناً چې دغه کس له اسلام څخه ووت ( کامل مؤمن نه دی).

د «خرج من الاسلام» څخه مطلب د ايمان کمال دی ، يعنې دا کس کامل مؤمن او مسلمان نه دی ځکه کامل مؤمن هغه دی چې له ضرر څخه يې نور خلک په امن وي .

قال القاري في المرقاة : فقد خرج من الإسلام أي من كمال الإيمان أو من حقيقة الإسلام المقتضي أن يسلم المسلمون من لسانه ويده .انتهى .

بل حديث شريف راغلي :« إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا الظَّالِمَ فَلَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّه بِعِقَابٍ مِنْهُ »[٣] .

ژباړه : کچيرې خلک يو ظالم ويني او لاس يې ونه نيسي لرې نه ده چې الله تعالی ټول د هغه په عذاب ګرفتار کړي .

---

[١]- سوره البقره : ٤٢ .

[٢]- مشكوة المصابيح - بأسناد ضعيف .

[٣]- رواه أبو داود، والترمذي والنسائي بأسانيد صحيحة.

او بل دا چې صلح په دې شرط جایز ده چې حلال حرام او حرام حلال نه کړي

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : «الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ، إِلَّا صُلْحًا حَرَّمَ حَلَالًا، أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا»[1].

یعنې : د مسلمانانو تر مینځ صلح کول جایز دي په دې شرط چې حرام حلال او حلال حرام نه کړ شي ،

## د صلح او شرعي قضاء تر مینځ فرق

۱- د صلحې په عقد کې د طرفینو رضاء او خوښي شرط ده مګر د قضاء په عقد کې الزام دی .

۲- د قاضي لپاره اسلامي شریعت شرطونه وضع کړي مګر د مصلح لپاره هسې شرطونه نشته .

۳- صلح یوازې د بنده په حقوقو کې کیدای شي مګر د الله تعالی په حقوقو کې صلح نشته ، مګر قضاء په دواړه ډوله حقوقو کې کیدای شي.

۴- په صلح کې تنازل او د خپل حق څه حصه پریښودل جایز دي مګر په قضاء کې زیادت او نقصان نشته .

۵- قاضي مصلح کیدای شي مګر مصلح قاضي نشي کیدای مګر په هغه صورت چې د قاضي شرایط پکې موجود وي [2].

---

[1]- رواه أهل السنن.

[2]- شروط القاضي الشرعي ص ٣٩ ، القضاء العرفي مقارنة بالفقة الاسلامية ص ١٣ .

## د صلح صورتونه

۱- د مسلمانانو او کافرانو تر مينځ (جزيه ، عهد ، امان ).
۲- د اهل عدل او اهل بغاوت تر مينځ .
۳- د زوجنين (خاوند او ښځې) تر مينځ صلح .
۴- د متخاصمو ډلو تر مينځ په جناياتو کې صلح (قصاص ، عفوه او ديت).
۵- په مالي برخه کې د متخاصمو ډلو تر مينځ صلح کول [۱] .

## قضاء (فيصله او پرېکړه)

قضاء په لغت کې حکم ، حل او فصل ته وايي چې د دوو متخاصمو ډلو تر مينځ پرېکړې کول دي تر څو هغوی پخپل حق وسپارل شي .
په اصطلاح کې :
امام الکاسانی رحمه الله وايي : القضاء : الحکم بين الناس بالحق ، الحکم بما انزل الله [۲] .
يعني : قضاء د خلکو تر منځ فيصله ده په حق سره په ما انزل الله (قرآن او سنتو ) .
ابن عابِدين رحمه الله وايي : القضاء: هو الفصل بين الناس في الخصومات حسمًا للتداعي وقطعًا للنزاع بالأحكام الشرعية المتلقاة من الكتاب والسنة" .

---

[۱]- موسوعة الفقهية ج ۲۱ ص ۳۲۶ .
[۲]- بدائع الصنائع ۷/۳ .

يعنې : قضاء : د خلكو تر منځ د جنجالونو او خصوماتو حل او فصل دي په شرعي احكامو كوم چې له قرآن او سنتو څخه اخيستل شوي .
امام رملي رحمه الله وايي : القضاء : الالزام من له الالزام بحكم الشرع.
قضاء او په خلكو كې د عدل قيام د دين عظيم مقصد دى ، لقوله سبحانه وتعالى : [لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ][1] .
ژباړه: يقيناً چې مونږ خپل پيغمبران له خپلو روښانه او ځرګندو هداياتو سره وليږل او له هغوى سره مو كتاب او تله نازل كړي ؤ تر څو پر خلكو كې عدل قايم شي.
د قضاء او فيصلې لپاره به يوازې اسلامي شريعت ته رجوع كيږي .
پر ټولو مسلمانانو واجبه ده چې د الله تعالى په راليږل شوي شريعت باندې حكم او فيصله وكړي ، نه د يوې ټولنې او قبلې په عاداتو او رواجونو يا وضعي قوانينو .
الله سبحانه وتعالى فرمايي:[وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ][2]
ژباړه: او هر څه كې چې تاسې شخړه كوئ ، نو د هغه (په هكله ) حكم به د الله جل جلا له لره وي .

[1]- سوره الحديد :٢٥ .
[2]- سوره الشورى :١٠ .

، وقال سبحانه و تعالى :[أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُواْ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُواْ إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُواْ أَن يَكْفُرُواْ بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلاَلاً بَعِيدًا][1] .

ژباړه : آيا هغو کسانو ته دې نه کتلي چې ګمان کوي چې دوی پر هغه څه چې پر تا او تر تا پخوا کسانو باندې نازل شوي دي ايمان لري ؟ حال چې غواړي (خپلې پرېکړو او فيصلو ) واک شيطان ته وسپاري په داسې حال کې چې حکم ور ته شوی دی چې د شيطان له پيروۍ څخه ډډه وکړئ شيطان غواړي چې ډير زيات يي بې لارې کړي .

وقال عز و جل :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلاً] [2].

ژباړه : ای مؤمنانو ! د الله جل جلا له او د رسول الله صلی الله علیه وسلم او له تاسې څخه د امر د خاوندانو پيروي وکړئ کله چې مو په کوم شي کې شخره وکړه ، نو هغه الله تعالی او رسول الله ته راجع کړئ ، که پر الله پاک او ورځ د آخرت ايمان لرئ دغه کار غوره دی او ښه پايله لري .

الله تعالی فرمايي : [إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلّهِ..] [3].

پس پر مسلمانانو واجبه ده چې خپل منځي اختلافات او پرېکړې په قرآن او سنتو وکړي او بغير له قرآن او سنتو په بل څه حکم و نه کړي چې د

[1]- سوره النسآء : ۶۰ .

[2]- سوره النسآء :۵۹ .

[3]- سوره يوسف :۴۰ .

قرآن او سنتو بغیر پر بل څه حکم کول لوی مُنِکر، قبیح عمل او طاغوت دی .

په ټولنه کې د طاغوتي پرېکړو او فیصلو څو مثالونه :

## د ښځو په بدو کې ورکول

د ښځو په بدو کې ورکول د دیموکراسۍ په شان یو سخت ظالمانه او طاغوتي قانون دی چې سراسر د اسلامي شریعت خلاف او په دې پلیت شیطاني قانون باندې عمل او فیصله کول طاغوت دی .

دغه ظالمانه طاغوتي قانون داسې دی چې کله د چا څخه قصداً یا خطاء سره قتل وشي ، یا د چا پر ناموس تیری (زنا ) وکړي د دغه جرم د سزا په مقابل کې مظلومه ښځه په بدو کې ورکوي داسې چې دغه ښځې ته عادي جامې ور اغوندي او په شپه کې یې د مقتول کور ته ورولي او دغه مظلوم او د عاطفې ډک انسان د خپلو هوسونو او د ژوند د بقاء ذریعه ګرځوي او د هغې حقوق او د ژوند آرمانونه تر پښو لاندې کوي او په هغې باندې ټول ژوند دوزخ ګرځوي ځکه چې د مقتول کورنۍ ټول کسان ور څخه کرکه او نفرت کوي او د یوې وینځې په شان یې ساتي .

دغه دود یا دې ته ورته نورې عنعنوي او عرفي پرېکړې د غربي دیموکراسۍ په شان د اسلامي شریعت خلاف ظالمانه ، طاغوتي پرېکړې دي چې د اسلامي شریعت پر وړاندې د مخالفت ښکاره اعلان دی .

**د رد شرعي دلائل :**

لومړی دلیل : په اسلامي شریعت کې د قتل سزا قصاص او دیت دی او بل دا چې پخپله به مجرم ته سزا ورکول کیږي ، د اسلام څخه مخکې د جاهلیت د زمانې په څیر به د زورواک د جرم په مقابل کې کمزوري او مظلوم ته جزا نه ورکول کیږي .

لقوله سبحانه وتعالى :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالأُنثَى بِالأُنثَى][1]

ژباړه : ای مؤمنانو ! پر تاسې باندې په قتلونو کې کسات فرض کړای شوی دی ، اصیل قاتل د اصیل مقتول په کسات کې ، غلام د غلام په کسات کې ، ښځه قاتله د مقتولې ښځې په کسات کې وژلی شي .

په ټولو جرمونو کې د اسلامي شریعت عامه قاعده دا ده چې یو کس به د بل بار نه اچتوي بلکي هر کس ته به د خپل جرم سزا ورکول کیږي .

لقوله سبحانه وتعالى :[وَلاَ تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى][2] .

**دوهم دلیل** :ټول قوانین او ټولې هغه پریکړي چې د اسلامي شریعت خلاف وي هغه که د انګریز آئین وي ، د دیموکراسۍ قوانین وي یا عنعنوي پریکړی وي قرآنکریم دغو ټولو ته طاغوت ویلی دی او دا ټول طاغوتي قوانین دي د قرآن او سنتو پر وړاندې د مخالف او بغاوت صریح او ښکاره اعلان دی .

---

[1]- سوره البقره : ۱۷۸ .

[2]- سوره فاطر : ۱۸ .

لقوله سبحانه وتعالى :[فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا] [1] .

ژباړه : نو نه ! ( ای رسوله ) ستا په رب قسم چې دوی تر هغه پوره مؤمنان نشي کيدای څو پورې چې تا ته په خپلو تولو شخړو کې تا فيصله کوونکی ومني بيا پخپلو ځانونو کې کوم خپګان و نه مومئ او ( دغه پريکړه ) په ډيرې خوښۍ سره و مني .

يعنې: تر هغه وخته مؤمنان نشي کيدای څو د اسلامي شريعت (قرآن او سنتو ) فيصلې په خوښی سره و نه مني .

او فرمايي : (أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ [2]

يعنې : نو ايا دوی د جاهليت ( د زماني ) حکم غواړي ؟ د يقين کوونکو خلکو لپاره بل څوک تر الله تعالى ښه حکم ورکولای شي ؟

د قومونو هغه خېټور مشران او ملکان او د دغو خيټورو تر تأثير لاندې ځنې آخوندان دې په دې ښه پوه وي چې که هر چا په دغه فيصله کې برخه واخيسته مظلوم انسان يې د هوسونو په مقابل کې د پيغورونو دوزخ ته و غورځولو نو دغه کسانو په طاغوت فيصله کړي ده ، الله تعالى به له تاسې څخه پوښتنه کوي .

خېټور مشران که نه پوهيږي ، افسوس د هغه عالم په حال چې ځان د

[1]- سوره النسآء : ۶۵ .

[2]- سوره المائده : ۵۰ .

رسول الله صلی الله علیه وسلم وارث بولي او د طاغوت په فیصله کې ګونګ ناست وي او چا ته حق نشي ویلای .

ای افسوس افسوس ، دعوي مو د اسلام او مسلمانۍ او فیصلې مو د طاغوت او شیطان دي .

چا چې پر دغو شیطاني قوانینو پرېکړې کړې وي هغوی دې توبه وباسي .

او د ټولنې پر ټولو علماوو ، مشرانو باندې فرض ده چې د دغو جاهلانه دودونو او همدارنګه عصري طاغوت ( ډیموکراسۍ ) پر وړاندې ودرېږي او پخپله ټولنه کې د اسلام سپېڅلی قانون نافذ کړي .

## په دودیزه یا عرفي قضاء کې د قتل سزا

په اسلامي شریعت کې عموماً قتل په درې ډوله دی :

**اول ، قتل عمد** :

قتل عمد یا قصدي وژل هغه دی چې وژونکی د قتل آله او سلاح استعمال کړي لکه : توره ، ټوپک ، چاقو ، لوی لرګی او اوسپنه او قصداً چا ته اور اچول او داسې نور او یا هغه ته په دې مقصد سزا ورکول چې مړ شي او داسې نور څکه د وژلو د آلې او اسبابو کارول د قصداً معنی لري .

**دوهم ، قتل شبه عمد :**

هغه قتل دی چې مقتول ظاهراً د قتل قصد نه لري او د قتل آله ونه کاروي لکه: د یوې سرې وهل په همسا ، کوچني لرګي ، څاپېړه او لاس او

غیره سره سړی مړ شي یا د زخم او درد له امله څه وخت پس مړ شي نو دا قتل شبه عمد بلل کیږي قصاص نشته دیت مغلظه دی .

**دریم ، قتل خطاء :**

قتل خطاء هغه قتل دی چې د مقتول نه وژل مقصد وي او نه هم وهل چې په دوه ډوله دی :

١- د فاعل په قصد او ګمان کې خطاء : دا چې یو کس په ښکار کې ګمان کوي چې هغه حیوان دی خو هغه انسان وي یا څوک ګمان کوي چې هغه حربي دی خو هغه مسلمان وي .

٢- یوازې په فعل کې خطاء : د یو چا هدف د ښکار ویشتل وي خو په غلطۍ سره انسان ولګیږي .

د لومړي قتل (قصدي) سزا قصاص او دیت دی ، د دوهم (شبه عمد ) سزا دیت مغلظه ده او د دریم قتل (خطاء) دیت دی .

مګر په دودیزو او عنعنوي جرګو کې دریو واړو قتلونو ته یو شان کتل کیږي ، او اکثراً داسې هم وي چې قتل یو کس کړی خو په بدل کې د کورنۍ بل بې ګناه کس وژل کیږي یا قتل خطاء وي مګر د هغوی فیصله د قصدي پشان وي.

او یا هم د قتل د سزا په بدل کې ښځې په بدو کې ورکوي کوم چې تفصیل یې مخکې بیان شو .

او په دې ټوګه په ټولنه کې په کلونو کلونو دوښمنۍ او وژنې روانې وي .

## په دودیزو جرګو کې د زخمونو سزا

د اندامو ماتول او زخمونو لپاره په اسلامي شریعت کې قصاص او دیت دي کچېرې په قصد سره وي قصاص دی او که خطاء سره وي دیت او عفوه په هر حالت کې غوره ده .

د بیروني اندامونو د ماتولو یا له کاره لویدل لکه : لاسونه ، پښې ، ژبه ، شونډې ، پوزه ، سترګې ، د ښځې تي ، د نارینه شرمګاه ، د ږیرې او سر د ویښتانو شکولو سره که قصداً وي قصاص (بدل ) دی او که په خطاء سره وي پوره دیت دی که کچېرې یو لاس ، یوه پښه ، یوه سترګه وي نیم دیت دی .

د هډوکو په ماتولو سره قصاص نشته دیت به د شرعي امام لخوا ټاکل کیږي .

او زخمونو مختلف صورتونه لري چې د ځنو لپاره د دیت پنځمه برخه ، لسمه برخه او دریمه برخه ټاکل شوې ده او عفوه کول په هر صورت کې غوره او لوی اجر لري .

مګر په دود او رواج کې کله د زخم او اندام ماتولو سزا د انسان په قتل اوړي .

او کله جرم یو کس کړی وي او سزا د کورنۍ بل کس ته ورکول کیږي او که کوم کس مظلوم او بې کسه وي نو د هغه څوک له سره پوښتنه هم نه کوي . او یا هم که د کوم زورور لخوا ظلم ورباندې شوي وي د زورور له ډاره هغه ته څوک څه نشي ویلای .

او يا د رواجي جرګو لخوا داسې پور ټاکل کيږي چې د اسلامي شريعت د ټاکل شويو حدودو خلاف وي .

## په دوديزو جرګوکې د فاحشې سزا

مخکې مو وويل چې د اسلامي شريعت خلاف هر ډول فيصله طاغوت بلل کيږي هغه که عرفي يا رواجي وي او کوم بل قانون طاعوت بلل کيږي په مسلمانانو باندې لازمه ده چې له منځه يې يوسي او خپلې فيصلې شريعت ته وسپاري .

په رواجي او دوديزو جرګو کې رواج دی چې کچېرې کوم کس د چا په ناموس باندې تيری وکړي يعنې د کومې ښځې سره زنا وکړي نو هغه به وژل کيږي او يا د سزا په توګه د عزت او دروازې د سپکاوي د جبران لپاره ښځې په بدو کې ورکوي کوم چې تفصيل يې مخکې بيان شو .

د زنا کارې ښځې لپاره چې په دوديزو يا عرفي قضاء کې کومه سزا ټاکل شوې هغه په ځنو ولسونو او قومونو کې يو شان او په ځنو کې بل شان وي ، فلسطيني عالم په قضاء العرفي کې ليکي :

١- زنا کاره به د خپلې کورنۍ لخوا وژل کيږي .

٢- د زنا کار سړي سره به په نکاح کيږي تر څو عار پټ شي .

٣- او دا ډول ښځه به د ټولو حقونو څخه محرومه وي ، له خپلوانو لره به نه پريښودل کيږي له کور څخه به نه وځي هغه ته به يوازې دومره جامه ورکول کيږي چې عورت يې ورباندې پټ وي .

المرأة التي تمارس الزناء و يترتب على ذلک :

- القتل من قبل أهلها .
- أو أن يتم زواجها بالفاعل .
- اذا تقاضوا عند القضاة العرفين ، فان هذا النوع من النسآء لا تستحق من الحقوق شيئا الا انهم قالوا: (لها ثوب يستر عورتها )[1] .

او کچېرې د يوې ښځې سره څوک په زور سره زنا وکړي په اسلامي شريعت کې په هغې باندې ګناه نشته

اتفق الفقهاء على أن المكروهة على الزنا لا اثم عليها و لا حد عليها[2] .

مګر په دود او رواج کې د داسې ښځې سزا هم د قصدي پشان ده .

په اسلامي شريعت د هغه زنا کارې او زنا کار لپاره چې واده شوي وي د رجم سزا ده او هغو لپاره چې واده شوي نه وي سل دورې وهل دي .

لقوله سبحانه وتعالى :[لزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ وَلا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ][3] .

يعنې : زنا کاره او زنا کار هر يو سل دُرې ووهئ د الله د دين په اړه دې په تاسې کې پر دوی د زړه سوي احساس نه پاريږي ، که تاسې پر الله او ورځ د آخرت ايمان لرئ . او هغو ته د سزا ورکولو په وخت کې دې د مؤمنانو يوه ډله موجوده وي.

---

[1]- القضاء العرفي مقارنة بالفقة الاسلامية .

[2]- ابن نجيم :البحر الرائق ٢١/٥

[3]- سوره النور : ٢.

او واده شویو لپاره رجم دی لقول رسول الله صلی الله علیه وسلم :«وَالثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَالرَّجْمُ»[1] .

جاء في الموسوعة الفقهية:

اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّ حَدَّ الزَّانِي الْمُحْصَنِ الرَّجْمُ حَتَّى الْمَوْتِ رَجُلا كَانَ أَوِ امْرَأَةً

وَقَدْ ثَبَتَ الرَّجْمُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَوْلِهِ وَفِعْلِهِ فِي أَخْبَارٍ تُشْبِهُ التَّوَاتُرَ . وَهَذَا قَوْلُ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ [2].

په دود او عرف کې مو د فحاشت د سزا په اړه افراط ولوستلو او همدارنګه په کفري او غربي ډیموکراسي کې د فحاشت په اړه تفریط دی داسې چې که فحاشت د طرفین په رضا وي باک نلري او کچېرې جبري وي په څه وخت بند به محکمویږي چې په دغه طاغوتي قانون کې بیا د فحاشت پوره پوره رواج او خپرول دي.

## په دودویزه یا عرفي قضاء کې د بهتان سزا

د اسلامي شریعت خلاف دودویزو یا رواجې طاغوتي جرګو کې کچېرې کوم کس په کومه ښځه د زنا او فحاشت بهتان پورې کړ نو هغه به قضاء عرفي ته خپل دلائل وړاندې کوي که یې ثابت نه کړ نو په قضاء عرفي کې

---

[1] - صحیح مسلم :۱۶۹۰ .

[2] - موسوعة الفقهية ج ۲۲ ص ۱۲۴ .

د هغه سزا د ژبې پرېکول يا د غاښونو ايستل او د څه مال ورکول دي او په دريو مشهورو کورونو باندې به سپين بيرغونه دروي :

جاء في قضاء العرفي لشيخ عبدالرحمن محمد :

اذا طعن رجل في شرف فتاة فعليه أن يأتي بالالة والبراهين على هذا الاتهام و كما يقولون في العرف (اثبت ونحن نقلع شوكنا) ، فان لم يثبت فان الحكم العرفي كما يلي :

تعتليه احكام المنشد ( ويمكن ان يكون الحكم في هذه الحالة قطع اللسان و أو نحت الأسنان أو أن يفتديه بالمال ).

أن يرفع رايات بيضاء في ثلاث بيوت مشهورة بالقضاء العرفي ويقول : هذه راية فلان بيضاء .

حال دا چې په اسلامي شريعت کې د قذف (بهتان ) سزا اتيا دورې وهل دي ، لقوله سبحانه وتعالى :[وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاء فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلاَ تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُوْلَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ][1] .

ژباړه: او هغه کسان چې په پاکدامنو ښځو تهمت لګوي، بيا څلور ګواهان رانه ولي، نو تاسو دوی اتيا دُرې ووهئ او هېڅکله هم د دوی ګواهي مه قبلوئ او همدغه کسان فاسقان دي.

[1]- سوره النور :۴ .

## په حدودو کې شفاعت کول

کله چې حد امام او شرعي محکمې ته ورسیږي او اثبات شي نو شفاعت کول پکې حرام دي ، د قوم مشران نشي کولای د حد په اړه د چا شفاعت وکړي په دلیل د دغه حدیث شریف :

عایشې ﵂ روایت کوي چې قریشو د مخزومیه ښځې په باره کې چې غلا یې کړې وه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته شفاعت وړاندې کړ ، هغه وفرمایل :«أتشفع في حد من حدود الله ، ثم قال : یا ایهالناس انما ضل من کان قبلکم انهم کانوا اذا سرق الشریف ترکوه و اذا سرق الضعیف فیهم أقاموا علیه الحد ... لو أن فاطمة بنت محمد سرقت لقطع محمد یدها»[1].

ژباړه: ایا تاسې د الله تعالی د حدودو څخه په یو حد کې شفاعت کوئ ، بیا یې وفرمایل : ای خلکو ! د تاسې څخه مخکې کسان چې بې لارې شول د هغوی وجه دا وه چې کله به کوم شریف کس غلا وکړه هغه به یې پریښودلو او که ضعیف کس به غلا وکړه په هغه باندې به یې حد جاري کولو ، کچیرې د محمد صلی الله علیه وسلم لور فاطمه غلا وکړي نو محمد به د هغې لاس قطع کوي .

## ننواتې یا د مجرم لخوا مقابل لورې ته د پسه ور وستل

زمونږ په ټولنه کې د نورو کرغیړنو د اسلام خلاف دودونو تر څنګ یو د ننواتې دود  او رواج دی هغه داسې چې : د دوه یا څو کسانو تر مینځ څه

[1] - جامع الصحیح ۱۷۵/۴ ، صحیح مسلم ۱۳۱۱/۳ .

شخړه او جنجال وشي او کوم څوک پر چا باندې تیری وکړي او بیا غواړي چې د خپل تجاوز او تېري په هکله روغه وکړي نو د هغه کور ته ننواتې ورځي او عذر ور څخه غواړي دغه ننواتې د جرم په لحاظ مختلفې جریمې لري .

مثلاً که جرم کم وي نو ملامت لورې یوازې یا د کور د څو کسان سره ننواتې ورځي او که جرم لوی وي سر ، لاس یا کوم بل اندام یي ور مات کړی وي او هغه غټه کورنۍ او خاندان وي بیا نو تیري کونکي خپل پټکی په غاړه کې اچوي پسه ، غوائی یا بل څاروی له ځانه سره کوي د ولس مشران له ځانه سره بیايي او د خپلې ګناه عذر ور ته کوي او کله چې ننواتې قبوله کړي مرکچیان یا جرګې واله را ټولیږي د اندام د ماتیدو یا سر ماتي د پاره جرمانه ټاکي چې هغه باید له ځنډ پرته قبول کړي .

او کچیرې څوک د مرکې یا جرګې واله فیصله ماته کړي نو هغه سپک او د قوم له قانون څخه وتلی بلل کیږي کلی او ولس له هغه سره اړیکي شکوي مړی او ژوندی ور سره ترک کوي .

مخکې دا مطلب واضح شو چې په اسلامې شریعت کې د دوو کسانو په مینځ کې روغه کول لوی اجر لري او چا چې تجاوز کونکي ته عفوه وکړه نو دا یقیناً نیک عمل دی خو په صلح کې شرط دا دی چې حرام حلال او حلال حرام نشي ، د ظالم تقویه ونه شي د څه شي مثلاً جرماني لزوم نه وي .

همدارنګه په دغه ننواتې کې چې کوم څاوري مثلاً پسه ور ورستل کیږي د هغه د غوښي خوړل حرام دي ځکه کوم څارووي د غیر الله په نوم اوچت

کړ شي د هغه د غوښي خوړل حرام دي ، مګر دا چې هغه چا ته خیرات کړي او پخپله یې نه ذبحه کړي او نه یې وخوري .

دا دود هم دی چې کله دوه کسان جنګ وکړي یا د بل مال په ناحقه وخوري بیا نو د یوه پیاوړي او زورور شخص کور ته ورځي او د هغه په دروازه یا پښو کې پسه ذبحه کوي ددې لپاره چې هغه په ده باندې ننګ وکړي او د مدعي له منګلو یې خلاص کړي زورور کس د ده پنا قبلوي او هغه ته د هر ډول مرستي ډاډ ورکوي .

مخکې مو وویل چې ددې څاروي د غوښي خوړل حرام دي ځکه چې الله جل جلا له فرمايي :«وَمَا أُهِلَ لِغَيرِ اللّه» یعنې: د هغې عوښي خوړل حرام دي چې د غیر الله نوم پرې واخیستل شي .

ټولو مفسرینو په اتفاق سره د دغه ډول څاروي د غوښو خوړل حرام ګڼلي دي چې هغه په ننواتې ، حاکم او خان او پیر ته یا د کوم بزرګ پر قبر باندې حلال کړ شي او دغه ټول یې د پورتنې آیت په حکم کې شامل کړی دي .

بل دا چې مجرم ته پنا ورکول حرام دي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : من مشى ظالم ليقويه و هو يعلم انه ظالم فقد خرج من الاسلام ( مشكوة المصابيح )

یعنې : څوک د ظالم سره ددې د پاره تګ وکړئ چې هغه تقویه کړي ، په داسې حال کې چې دی د هغه په ظلم خبر وي نو یقیناً چې دغه کس له اسلام څخه ووت .

او که مظلوم وي د مظلوم مرسته کول شرعاً لازم دي خو د ځاروي ذبحه ، د ښځو وروستل ، د قرآنکریم وروړل حرام دي .

الله جل جلا له فرمايي:[ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ] [1].

يعنې : په نیکی او پرهیزکاری کې یو له بله مرسته وکړئ او (هیچکله ) د ګناه او نافرمانی په کار کې یو له بله مرسته مه کوئ.

لنډه دا چې پورته دود د اسلامي شريعت خلاف دود دی د هغې له مينځه وړل د ټولو مسلمانانو مسئوليت دی .

[1] - سورة المائدة:٢ .

# شپږم فصل

## سپره والی او خرافات

## د ځنو شیانو سپره ګڼل

**پوښتنه** : د نوکانو پریکول په کوټه کی کوم نقصان لری؟ لکه څنګه چې خلک ډیرې خطرناکې معناوې ترې باسي او همدارنګه د پښو او لاسو نوکان په یوه ورځ پرې کول څه تاوان لري؟ لکه چې ددې په هکله هم خلک مختلف تاوانونه بیانوي وايي چی غم او ښادي یې په یوه ورځ تر سره کیږي او داسې نور؟

**ځواب** :دغو شیانو ته توهم پرستي یا سپره والی وايي په اسلام کې ددې هیڅ اصل نشته چا ته چې څه ورپېښیږي هغه به یې خپل عمل وي.

د توهم پرستی څو مثالونه دا دي:

د شپې جارو وهل ، د چهارشنبې په ورځ د نوکانو پرېکول ، د شپې لخوا د نوکانو پرېکول ، په یوه ورځ د ویښتانو او نوکانو پرېکول ، په یوه ورځ د پښو او لاسونو د نوکانو پرېکول ، د نوکانو پرې کول په کوټه یا اتاق کې او نور ښه نه بولي دوی وايي چې داسې کول نستي او د رزق تنګي راولي.

دا هر څه غلط دي دا محض توهمات دي په شریعت کې ددې هیڅ اصل نشته [1].

[1]- حنفي فقه ابوالمختار ج۱ ص ۱۵۸ – فتاوي یوسفیه ج ۱ ص ۳۶۲ .

## د حيض د وينې د ټوټې مينځل ضرور دي ؟

پوښتنه : په ځنو ښځو کې دود او رواج دی چې د حيض ټوټه چې په اوس عصر کې اکثر له پمپرو څخه استفاده کوي مينځي او بې ځايه يې نه غورځوي ددې حکم څه دی ؟

ځواب: دې ته ورته پوښتنه له الاسلام سوال جواب څخه هم شوی ده چې په ځواب کې ليکي:

د هيڅ معتبر اهل علم څخه دا نه ده نقل شوي چې د ښځې د پاره دا ضرور وي چې د حيض د وينو ټوټه دې ومينځې ، ددې وينو محترم ګڼل او د هغه بې ځايه نه غورځول په اسلام کوم اصل نه لري.

د صحابه کرامو مبارکو بيبيانو به چې د حيض د وينو ټوټه مينځله هغه يې په دې خاطر مينځله چې بل ځل يې استعمال کړي ځکه چې بله ټوټه به نه وه.

خو نن چې څوک دغه کار کوي د بې علمي له وجې يې کوي چې داسې کول کوم اصل نه لري.

اوس مهال اکثراً يو ځل مصرف پمپر او کوتکس اچول کيږي چې د هغه مينځلو ته څه ضرورت دی ؟ بلکي يو خرافاتي فکر او کار دی[1].

---

[1] - جاء في فتاوى الاسلام سوال جواب: هناك عادة عند صديقاتي المسلمات أنهن يغسلن الفوط النسائية التي يستعملنها وقت العادة الشهرية قبل أن يرمينها بعد الاستعمال. قيل أن هناك نوع من الهستيريا والمضايقة تصيب من لا تغسل فوطها جيداً قبل أن ترميها. قالوا أن الشيطان والجن يحبون أكل دم الحيض المتبقي على الفوط غير المغسولة جيداً وبعدها يؤذون التي لا تغسلها جيداً

## د حيض او نفاس په وخت د ځان مينځل څه حکم لري ؟

زما پوښتنه د نوی پيداشوی ماشوم د څلويښتی د ورځو د ځينو کړنو په باره کې ده.

هغه داسې چې ځيني ښځې دا عقيدی لري چې ځينې کارونه بايد تر سره او ځينې نور يې بايد لغوه شي لکه:

١- د مور نه خبرول په کوم مړي او يا هم په کوم ژوندي،ځکه چې دوی وايي چې په هلک څلويښتي لويږي يعنې بياماشوم وده نکوي.

٢- د مور د ځان نه مينځل تر لسو لسو ورځو مخکې يعنې هره لسمه ورځ ځان مينځي،ځکه چې دوی وايي چې په هلک د مور څلويښتی لويږي

---

الحمد لله فلم يذكر أحد من أهل العلم المعتبرين أن المرأة ينبغي لها أن تغسل الخرقة التي يكون فيها شيء من دم الحيض إذا كانت ستلقيها ، ولن تستخدمها ، بل ظاهر فعل الصحابيات أنهن لم يكن يغسلن هذه الخرق ، وقد كان النبي ﷺ يعلم بذلك ، ولم يرد أنه نهاهن فقد روى الترمذي (٦١) وغيره من أهل السنن عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ : قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ وَهِيَ بِئْرٌ يُلْقَى فِيهَا الْحِيَضُ وَلُحُومُ الْكِلَابِ وَالنَّتْنُ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " إِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ لا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ " وهو حديث صحيح صححه أحمد ويحي بن معين وابن خزيمة وابن تيمية وغيرهم رحمهم الله.

والمقصود بالحيض : بِكَسْرِ الْحَاءِ وَفَتْحِ الياءِ جَمْعُ حِيْضَةٍ بِكَسْرِ الْحَاءِ وَسُكُونِ الياء وَهِيَ الْخِرْقَةُ الَّتِي تُسْتَعْمَلُ فِي دَمِ الْحَيْضِ كما قال المباركفوري عند شرحه لهذا الحديث . فالظاهر أنهم كانوا يرمونها ملوثة بالدم ، وإلا لم يستنكر الصحابة طهارة الماء الذي توجد فيه هذه الخرق.

فما تذكره صديقاتك لا يعلم له أساس من الصحة بل هو من الخرافات والتخرصات والرجم بغير علم . والله أعلم.

يعنې بياماشوم وده نكوي او د مور شيدې كميږي.

٣- د هلک له لمبيدا (لامبوولو)څخه وروسته مور نه غړيږي تر څو چې خپله غسل ونکړي.

۴- تر لسو شپو مور له ماښامه وروسته له کوټې څخه بيرون ته نه وزي،ځکه د دوی په عقيده چی بيا شيدی ورکيږي.

۵- او که په کوم هلک څلويښتی لويدلی وي نو هغه يا له سروزرو او يا هم له خوشيو(دحيواناتو له مرداری )سره تلی(وزن کوي يې)،تر څو له څلويښتی خلاص شي.

او داسی نور...........

زما په نظر خو دا خرافات دی آيا په شريعت کې پدې هكله څه شته او كنه؟

ځواب:

دا ټول خرافات او توهم پرستي ده چې په اسلام كې هيڅ اصل نه لري .

اول : د حيض او نفاس په وخت كې غسل كول د نظافت ساتل دي او اسلام د نظافت پر ساتلو ډير ټينکار کړی دی .

جاء فى الفتاوى الاسلام ويب :

فلا صحة أبدا لمثل هذه المعلومة، بل على العكس فإن النظافة ضرورية في فترتي النفاس والحيض نتيجة زيادة إفرزات الجسم والعرق، والتي تزداد في هاتين المرحلتين، ولا علاقة للسرطان من قريب أو بعيد بغسل

الشعر، ولا بغسل الجسم[1].

دوهم : نفع او ضرر رسول يوازې د الله تعالی له جانبه دي د ځلوښتی د بد او سپره کڼلو عقيده د جاهليت د وخت منحوسه عقيده ده چې هغه وخت خلکو حائضه او نفاسه ښځه نجسه او بده ګڼله د هغوی سره به يې ناست او ولاړه نه کول .

د اسلام په مقدس دين کې دغه ډول عقائد ټول مردود دي د حيض دوره د حمل د پاره د رحم تياری او د نفاس دوره د يوه بشر د پيدايښت دوره ده چې ښځې د الله تعالی د يوه بنده د پيدايښت د پاره مرګونې قربانۍ ورکړې وي ، هغه بده ، نجسه او سپره کڼل د جاهليت عقيده ده .

بلکي د هغه د پاره لمونځ ، روژه او جماع د مرض او ضرر په وجه معاف شوي دي .

نفع او ضرر رسول يواځې د ستر څښتن تعالی کار دی او بس ،لقوله تعالی :[قُل لاَّ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلاَ ضَرًّا إِلاَّ مَا شَاء اللّهُ ] [2].

ژباړه: ووايه (ای محمده ! دوی ته ) چه زه ځان ته د نفع او ضرر رسولو واک نه لرم مګر هغه څه چې اراده وفرمائي الله.

وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ الله عَنْهَا قَالَتْ: بَيْنَا أَنَا مَعَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم مُضْطَجِعَةٌ فِي خَمِيصَةٍ، إِذْ حِضْتُ، فَانْسَلَلْتُ، فَأَخَذْتُ ثِيَابَ حِيضَتِي، قَالَ: «أَنُفِسْتِ»؟ قُلْتُ: نَعَمْ، فَدَعَانِي، فَاضْطَجَعْتُ مَعَهُ فِي

[1] - مركز الفتاوى الاسلام ويب .

[2] - سوره الاعراف : ۱۸۸.

الْخَمِيلَةِ[1].

ژباړه: د مؤمنانو مور ام سلمه ﷺ وايي : د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره په يوه چادر کې بيده وم چې حايضه شوم په کراره مې ځان بيرون کړ او د حيض جامې مې واغوستلې . رسول الله صلی الله عليه وسلم پوښتنه وکړه ؟ ايا حايضه شوې ؟ ومي ويل : هو بيا يې زه ور وغوښتم او له هغه سره په هماغه چادر کې بيده شومه .

پورته عقايد ټول خرافات او توهم پرستي ده چې په اسلام کې هيڅ اصل نه لري .

## د دوو اخترونو تر مينځ د واده سپره ګڼل

پوښتنه: زه غواړم چې پوه شم که چيرته څوک د دوه اخترونو تر مينځ يعنې د کوچني اختر او لوی اختر په مينځ کښې واده وکړي ايا د اسلام مبارک دين کښې دې لپاره کوم شرعي ممانعت شته که نه ځکه بعضې خلک په دی باور دی چی د دوه اخترونو تر مينځ واده کول ښه ندی .

ځواب: دا خبره چه د دوو اخترونو تر مينځ بايد واده ونشی بالکل غلطه ده .[2]

دا ځکه چې دا د جاهليت د وخت يوه زړه کاپی راپاتې شوي ده او له بده مرغه په ځينو خلکو کې لاهم شته.

د نکاح کولو په اړه په اسلام کې بې حده زيات ترغيب راغلی دی رسول الله

---

[1]- رواه البخاری :۲۹۸ .

[2]- د ابوالمختار حنفی فقه – فتاوی يوسفيه ج ۱ ص ۳۱۸ .

صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دی چې : نکاح زما له سنتو څخه ده ځوک چې زما له سنتو مخ اړوي هغه له ما څخه نه دی.

د نکاح کولو لپاره د وخت تعین نشته او نه داسې کوم دلیل شته چې په فلاني وخت کې فضیلت لري او په فلانې وخت کې منع ده بلکي نیک او د خیر کار دی هر وخت چې امکان برابر شي کول یې پکار دي.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : «إذَا أتاكم مَنْ تَرْضَوْنَ خُلَقَّهُ وَدِينَهُ فَزَوِّجُوهُ ، إن لا تَفْعَلوا تَكُنْ فِتنة في الأرض وفساد عَرِيضٌ»[1].

یعنې : کله چې راشي تاته د خواستګارۍ د پاره داسې ځوک چې دین اخلاق یې د رضایت وړ وي نو هغه ته یې په نکاح ورکړئ ، او که داسې ونه کړئ نو فتنه او فساد به په ځمکه کې زیات شي.

و بالله توفیق

## د نجلی پیدا کیدو په صورت کې د هغې مور منحوسه ګڼل

د نجونو پیدا کیدل منحوس ګڼل او یا د هغې مور منحوسه او سپره ګڼل او د هغې حقارت او سپکاوی سخته ګناه او د اسلام څخه مخکې د جاهلیت د زمانې باطله عقیده ده .

الله سبحانه وتعالی فرمایي : [وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ بِالأُنْثَى ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ، يَتَوَارَى مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ أَيُمْسِكُهُ عَلَى هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ][1].

[1]- رواه الترمذي .

ژباړه: او کله چې د دوی کوم یوه ته د لور د پیدایښت خبر ورکړ شي نو مخ یې تک تور، له قهره او غضب نه ډک وي. د هغه دې بد زیري له کبله چې پرې شوی له خپل قوم نه پټ ګرځي او په دې فکر کې وي چې له سپکوالي سره یي وساتي او که ژوندی یي په خاورو ننه باسي.

## د صفرې میاشت منحوسه او سپره ګڼل

د صفرې میاشت منحوسه او سپره ګنل د جاهلیت د زماني خرافاتي عقیده ده ، مسلمانان د صفرې میاشت د کامیابۍ او خیر « صفر المظفر ، صفر الخیر » بولي [2].

## د ناوی او نوي سپرلی اویا نوي کور سپره والی

دا عقیده لرل چې کچېرې نوي ښځه کور ته واده کړي او څه غم او مصیبت ور پیښ شي نو وایي چې دا ښځه (ناوی ) سپره او دده تندی سپیره دی او یا هم نوي کور او یا نوي سپرلی دا باور لرل هیڅ اصل نلري خرافاتي عقاید دي خیر د الله تعالی د جانب دی او شر د خپل عمل له لاسه انسان ته ورپیښیږي .

الله سبحانه وتعالی فرمایي :[قُل لاَّ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلاَ ضَرًّا إِلاَّ مَا شَاء اللّهُ] [3].

---

[1]- سوره النحل ۵۸-۵۹ .

[2]- د ابوالمختار حنفی فقه ص ۱۵۴ – فتاوی یوسفیه ج ۱ ص ۳۵۹ .

[3]- سوره الاعراف : ۱۸۸ .

**څو نور خرافات :**

۱- د تور رنګ پشی او تور رنګ قارغه بد ګڼل .

۲- د لور یا زوی د نکاح ځند سحر ګڼل حال دا چې دا مشکل یا د مهر لوړوالی یا اقتصادي مشکل او بل څه وي.

۳- په ځنو خلکو کې دا عقیده ده چې د ښځې د لاس ذبحه ښه نه بولي دا عقیده لرل بدعت او حرام کار دی.

۴- په ځنو خلکو کې دا مشهوره ده چې د کوم کور چرک یا چرګه د مازدیګر او ماښام په منځ کې آذان وکړي نو که هغه چرګ یا چرګه حلاله نشي څه پیښه رامینځته کیږي دا عقیده شرکیه بدعت دی.

۵- ځنې خلک بیا دا وایي چې که سپی وانګولي څه مرض مینځته راځي دا ډول خرافات هیڅ اصل نلري.

۶- په ځنې خلکو کې دا مشهوره وي چې که د چا ښی سترګه ورپیږي خوشحالی راځي او که چپه سترګه یې ورپیږي خفګان دا عقیده لرل بدعت او کوم اصل نلري .

۷- په ځنو خلکو کې دا رواج او دود دی چې کله مسافر له کور څخه ووځي نو په همغه ورځ د هغه اتاق نه جارو کوي دوی داسې کول سپره ګڼې دا هم خرافاتي دود او رواج دی .

۸- په ځنې خلکو کې دا باور وي چې که د کوم سړي ورغوی خارښت وکړي مالدار ګرځي دا هم بې اصله خبره ده.

۹- ځنې خلک دا باور لري چې که د کور په دیوال یا د ونې په ښاخ باندې کارغه کیني او وچغیږي او یا هم د چې په پیاله کې خلکی ښکاره شي نو دوی وایي چې میلمه راځي داهم هیڅ اصل نلري .

۱۰- ځنې کسان دا عقیده لري چې د جمعې په شپه باندې د مړو ارواح کور ته راځي که خیرات وشي نو خوشحاله خپلو قبرونو ته ځي او که خیرات ونشي نو پریشانه او خفه خپلو قبرونو ته ځي دا عقیده او باور هیڅ شرعي اصل نلري .

۱۱- په لاس کې د فلزي حلقې اچول او د روماتیزم درملنه چې نه علمي او طبي اصل لري او نه هم دیني.

۱۲- د بد نظر د دفع لپاره د فیروزې د ګوتې کارول او یا د سپینلي دودول .

په لاس کې فلزي حلقې اچول ، بد نظر لپاره لپاره د سپینلي او فیروزې کارولو په اړه شرعي حکم داسې دی:

**اول حکم** : څوک چې په دې عقیده وي چې دا شیان مؤثر بذات دي ، ګټه رسوي او ضرر دفع کوي دا عمل شرک دی.

**دوهم حکم :** که څوک په دې عقیده وي چې دا هغه اسباب دي چې الله تعالی ددې په وجه بلاء دفع کوي شرک اصغر او ګناه ده ځکه چې دا خبره په اسلامي شریعت کې هیڅ اصل نلري او دا ذریعه شوه شرک لره.

د سحر او نظر علاج به په شرعي رقیه تر سره کیږي نه په شنو مریو ، شنو جنډو ، بدراو او سپنلې باندې ځکه چې داسې کول هیڅ شرعي اصل نلري.

**دریم حکم :** او که څوک د نفع او د ضرر د دفع عقیده ونلري خو دا کارونه د تشبه او زینت لپاره کوي لکه په لاس یا غاړه کې د ځنځیر اچول او داسې نور ، نو دا کار په منع شوې تشبه کې راځي.

شرعي لارښوونې :

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: « وَمَنْ تَعَلَّقَ وَدَعَةً ، فَلَا وَدَعَ اللَّهُ لَهُ » [1].

یعنې : که چا و ځړولو صدف ( د بلاء او نظر دفع لپاره )، نو الله به د هغه څخه سکون او اطمنان واخلي ( د رسول الله صلی الله علیه وسلم بد دعایي ده.

عن عمران بن حصین :« حدیث عِمران : أنّ النبي ﷺ رأى رجلا في یده حلقةً مِن صفر (الحدیثَ)

عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَیْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ رَأَى رَجُلاً فِي یَدِهِ حَلْقَةٌ مِنْ صُفْرٍ، فَقَالَ: ((مَا هَذِهِ؟)). قَالَ: مِنَ الْوَاهِنَةِ.فَقَالَ: ((انْزِعْهَا فَإِنَّهَا لاَ تَزِیدُكَ إِلاَّ وَهْنًا، فَإِنَّكَ لَوْ مُتَّ وَهِيَ عَلَیْكَ مَا أَفْلَحْتَ أَبَدًا » [2].

ژباړه : د عمران بن حصین نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یو کس ولید چې حلقه یې په لاس کې وه ( داسې حلقه چې په یوه شي احاطه شوې وه) ، ویې فرمایل : دا څه دی ؟ هغه وویل : واهنه مرض دی ( د لاس د مفصل روماتیزم) ، ویې فرمایل : دا لرې کړه ځکه دا نه

---

[1] - رواه مسند احمد .

[2] - رواه أحمد ، ابن ماجه و ابن حبان.

زياتوي مګر ضعف او مرض ، پس کچيرې ته مړ شي او دا دې په لاس کې وي نو هيڅکله به کامياب نشې.

عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّهُ رَأَى رَجُلاً فِي يَدِهِ خَيْطٌ مِنَ الْحُمَّى، فَقَطَعَهُ وَتَلاَ قَوْلَهُ: [وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِاللّهِ إِلاَّ وَهُم مُّشْرِكُون].

و في رواية عن حذيفة بن اليمان ﷺ، أنه رأى رجلا في يده خيط من الحمى، يعني وضع هذا الخيط يزعم أنه ينفع في دفع الحمى أو رفعها، وهو المرض المعروف، فقطعه حذيفة، وهذا بحسب الحال، أن الإنسان ينكر المنكر بيده إذا كان له الصلاحية .

ابن ابی حاتم له خذيفه بن يمان ﷺ نه روايت کوي چې : هغه يو سړی وليد چې په لاس کې د د يو مرض د دفع لپاره بند او حلقه وه ، چې هغه کس په دې نظر وو چې دا ددې مرض دفع کوونکی دی ، نو خذيفه رضی الله عنه هغه ورباندې قطع کړ ، دا په دې وجه چې څوک په منکر باندې د منع کولو توان ولري نو هغه دې په لاس سره منع کړي[1] .

په همدې نبوي صلی الله عليه وسلم ارشاداتو باندې اکتفاء کوو:

الله سبحانه وتعالی دې مونږ د هر ډول پټ او ښکاره شرک ، بدعت او خرافاتو څخه وساتي.

[1] - الاكاديمية الاسلامية – شيخنا دوكتور سهل العتيبي

## د بدعت او ګناهونو د خپريدو پروړاندې د سکوت خطر

الله سبحانه وتعالى فرمايي : [وَاتَّقُواْ فِتْنَةً لاَّ تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنكُمْ خَآصَّةً وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ] [١].

ژباړه: اوتاسو له هغې فتنې نه ځان وساتئ چې په تاسو کې به يواځې خاص ظالمانو ته نه رسيږي او پوه شئ چې بېشکه الله ډېر سخت عذاب وا لا دى.

ابن كثير رحمه الله وايي : الله تعالى خپل مؤمنان بنده ګان له داسې فتنې څخه ويرولي دي او د داسې امتحان څخه چې په هغه کې به يوازې ګناه کوونکي شامل نه وي بلکي عام به وي .

ابن عباس ﷺ په تفسير ددې ايت کې وايي : الله تعالى مؤمنانو ته حکم کړى دى چې د منکراتو او ګناهونو پر وړاندې سکوت ونکړئ که نه د الله تعالى عذاب به پر ټولو باندې نازل شي .

قرطبي رحمه الله وايي : زمونږ علماء وايي : هغه فتنه چې د هغه په وجه به ټول هلاکيږي هغه د ګناهونو ، منکراتو او بدعاتو ظهور او انتشار دى داسې چې خلک يې نه منع کوي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:«إن الله عز وجل لا يعذب العامة بعمل الخاصة، حتى يروا المنكر بين ظهرانيهم وهم قادرون على أن ينكروه، فإذا فعلوا ذلك عذب الله الخاصة والعامة»[٢].

[١]- سوره الانفال :٢٥ .

[٢]- فتح الباري شرح صحيح البخاري

ژباړه : يقيناً الله تعالى د خاصو خلکو په ګناه عام خلک نه عذابوي ، مګر دا چې هغوی منکر او ګناه ويني او د ګناه څخه په انکار او منع کولو قادر وي خو نه يې منع کوي نو کله چې دا کار وکړي نو الله تعالى د خاصو خلکو په ګناه په عامو خلکو عذاب راولي.

له جابر ﷺ څخه روايت چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : « أَوْحَى اللَّهُ إِلَى مَلَكٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ أَنِ اقْلِبْ مَدِينَةَ كَذَا وَكَذَا عَلَى أَهْلِهَا!! قَالَ : إِنَّ فِيهِ عَبْدَكَ فُلَانًا لَمْ يَعْصِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ ؟! قَالَ : اقْلِبْهَا عَلَيْهِ وَعَلَيْهِمْ ، فَإِنَّ وَجْهَهُ لَمْ يَتَمَعَّرَ لِي سَاعَةً قَطُّ»[1].

ژباړه: الله تعالى جبرائيل عليه السلام ته حکم وکړ چه فلانى کلى سره له خپلې ټولې آبادۍ په بل مخ کړه ، جبرائيل عليه السلام عرض وکړ چې په دې کلى کې خو ستا فلانى بنده هم دى ،چې د سترګې د رپ په اندازه يې هم ستا نافرمانى نده کړى د الله (ﷻ) د طرف نه حکم وشو چې دغه آبادي سره د دغه بنده په ټولو باندې واړوه ځکه چې د يو ساعت د پاره هم د دغه بنده مخ زما له وجې متغير شوي ندى .

او رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:« مروا بالمعروف وانهوا عن المنكر قبل أن تدعوا فلا يستجاب لكم »[2].

ژباړه: په نيکو کارونو أمر کوئ او له بدو کارونو منع کوئ مخکې له دې چې تاسې به دعا کوئ او ستاسې دعا به نه قبليږي .

[1]- رواه البيهقي في شعب الايمان

[2]- رواه ابن الماجه و ابن حبان

همدارنګه صحیح مسلم روایت نقل کړی چې رسول الله ﷺ فرمایي :
«تعرض الفتن على القلوب كالحصير عوداً عوداً ، فأي قلب أشربها نكت فيه نكتة سوداء ، وأي قلب أنكرها نكت فيه نكتة بيضاء ، حتى تصير على قلبين ، على أبيض مثل الصفا ، فلا تضره فتنة مادامت السماوات والأرض ، الآخر أسود مرباداً كالكوز مجخياً لايعرف معروفاً ولاينكرمنكراً إلا ماأشرب من هواه »[1].

ژباړه : زړونه به د فتنو سره داسې مخامخ شي لکه پوزی یو پر بل پسې ، نو کوم زړه چې په دغو فتنو باندې خوښ او راضي شو نو په هغه کې به یو تور داغ پیدا شي . او کوم زړه چې هغه بد وګڼلو په هغه کې به سپین داغ پیدا شي تر څو ټول سپین شي لکه صافه ډبره ، نو څو پورې چې ځمکې او آسمانونه دي دغه زړه ته به فتنې ضرر ونه رسوي ، هغه بل تور (زړه) به لکه د کړې شوې او یا سوری کوزې پشان وي چې نه به ښه کار پیژني او نه به له بد کار څخه کرکه کوي مګر په هغه کې به یوازې هوا او خواهشات ځښل کیږي .

**نوکله چې دعوت الى الله ترک شي :**

دعوت الى الله او أمر بالمعروف او نهى عن المنكر ددې امت عظیمه فریضه ده ، ددې امت د فضیلت سبب دی ، د پیغمبران علیهم السلام لاره ده ، نو کله چې أمر بالمعروف او نهى عن المنكر ترک کړ شي ، د علم ځای به جهل ونیسي ، نیکو او صالح اعمال ځای فسق او فجور ونسي ،

[1] - رواه مسلم

د صالح انسانانو ځای به فاسقان ونیسي ، د سنتو د متابعت ځای به بدعت ونیسي .

جهل ، فسق او فساد او فحاشت به خپاره شي ځمکه به فساد پر سر واخلي .

اهل خیر به یوازې او غریب شي او اهل فساد به قوت ومومي ، بلاخره د الله تعالی عام عذاب او عامې بلاوې نازلیږي چې د هغه څخه به هیڅوک په امن نه وي .

لقوله سبحانه وتعالی : [وَاتَّقُواْ فِتْنَةً لاَّ تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنكُمْ خَآصَّةً وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ] .

پای

و بالله توفیق

الحمدلله چې دا کتاب مې د الله تعالی په فضل سره پای ته ورسولو څه چې پدغه کتاب کې صحیح او د شرعې موافق دي هغه د الله تعالی د جانبه دي او که څه خطاء پکې وي نو هغه به زما خطاء وي چې معافي له رب العالمین څخه غواړم .

والحمد لله رب العالمين

وصلى الله وسلم على نبينا محمد وعلى آله وصحبه أجمعين

حمدالله "شاکري"

غفرله و لوالديه و لذريته و لجميع المسلمين

# مراجع


١- قرآنكريم

٢- كتب السنة

٣- موسوعة الفقهية

٤- فقه الاسلامي و ادلتة

٥- كتب الفقه الحنفي (درالمختار ، المبسوط ، بحرالرائق ، تبين الحقائق ، بدائع الصنائع ....)

٦- فتاوى الحنفي (هنديه ، فتاوى دارالعلوم ديوبند ، كفايت المفتي ، فتاوى محموديه .....)

٧- فتاوى اللجنة الدائمة ، مجلة البحوث الاسلامي ، فتاوى علماء البلد الحرام ، مجمع الفقه الاسلامي.

٨- كتاب البدعة ضوابطها و أثر سيءُ في لامة

٩- نور السنة / دوكتور سعيد بن علي وهف القحطاني

١٠- البدعة / دوكتور فهد العصيمي

١١- سنت او بدعت / مفتي محمد شفيع

١٢- داراسات البدع و المبتدعين / ابى عبدالله محمد بن سعيد رسلان

١٣- قواعد معرفة البدعة / محمد بن حسين الجيزاني

١٤- مفهوم البدعة / دوكتور عبد الإله بن حسين العرفج

١٥- موسوعة البدعة المنشرة بين الناس موقع أخوات في طريق الايمان

١٦- قواعد الفقهية / شيخنا دوكتور سعد بن ناصر الشثري